

I.R.C

د نجات بین المللی کمیټه

# د پښتو او دري ژبې

# د علمي

# سمینار مجموعه

د هنګو د ښوونې او روزنې پروګرام

H.E.P

لومړۍ برخه : پښتو

کال : ۱۳۷۳ هـ ش - ۱۹۹۴ م

اهداء :

هغو ارادتمند و مسلمانانو ته چې د حق له اظهار او د حقیقت له بیان څخه چپ پاتې نشول او ددې لوړ ارمان او مقدس هدف د تحقق لپاره يې سرښندنه غوره کړه.




مهتمم :

د هنګو د ښوونې او روزنې د پروګرام مسئول - محمد قاسم «فرقاني»

ترتيب کوونکي :

د ژبې د علمي سيمينار استاذان - محمد اسحاق «حقجو» عبدالمتين «حبيب زی» او ميرزا محمد «صديقي»

همکاران :

ګل حبيب ، قاري عبدالواسع ، محمد سميع «نجيب» خواجه عبدالرحمن ، محمد قاسم «وهاج الدين» ، عبدالهاشم او عبدالرحمن «قادري»



۱۳۷۳ هـ ش - ۱۹۹۴ م

بســم الله الرحمٰن الرّحيم

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ ط

# ســریزه

د نجات بین المللی کمیټې د هنګو د سنوونې او روزنې ابتدائی پروګرام د هغو مهاجرینو لپاره چې د داخلی او خارجي کمونستانو د ظلمونو د لاسه ئې هر راز تکلیفونه ګاللې او د دې ظالمانو پر له پسې تیریو په نتیجه کښې چې په دې مظلوم او مسلمان ملت ئې کړی او هجرت ته مجبور شوی وه ، په پاکستان کښې دافغانی مهاجرینو د کوچنیانو د سنوونې او روزنې دابتدائی دورې په ارتباط دلومړې حل لپاره په 1988 کا کښې یو سلسله تعلیمی او تربیوی فعالیتونه په ازمایښتي ډول پیل کړل اولومړنی فعالیتونه د استاذانو له خوا په ښه بریالیتوب سره وړاندې تلل چې په نیجه کښې دی کار انکشاف وموند او یو اونیز ، دوه اونیز ، دری اونیز ، او څلور اونیز مسلکی سمینارونه ، درې میاشتنی د مربی معلم کورس ، اتلس ورځنی د ریاضی علمی سمینارونه او دولس ورځنی داداری سمینار ونه ترتیب کړل چې تراوسه د افغانستان په دننه او د هجرت په دیار کښې په اکثرو مدارسو کښې تطبیق او د استفادې

وړ ګرځیدلی دی .

څرنګه چی د هری جامعی او مملکت پیشرفت او پراختیا د هغی جامعی په علم، پوهی او فرهنګ پوری تړلی دی او د غه علم، پوهه او فرهنګ د هغی جامعی د ملی ژبی سره ارتباط لری .

یعنی هیڅ ډول کره، علم او فرهنګ د ژبی د دخالت څخه پرته امکان نلری نو په همدی اساس نوموړی پروګرام لازم وګڼله چی د نورو مسلکی او اختصاصی سمینارونو ترڅنګ د پښتو او دری ژبی علمی سمینار هم جوړ او د مدارسو د ژبی د ښوونکو د ښی کتنی لپاره ئی دایر کړی .

د نیکه مرغه چی مؤظف شوی کسان په د غه کار بریالی شول او د ۱۹۹۲ میلادی کال په دوام کښی یی د غه سمینار ترتیب او په آخر د همد غه کال یی د مهاجرینو لپاره د جهادی تنظیمونو د مدرسو د استاذانو په وړاندی تطبیق او ارزیابی کړ .

د تطبیق او ارزیابی څخه وروسته د افغانستان په داخل کښی هم د پښتو او دری ژبی علمی سمینارونه د نورو سمینارونو ترڅنګ د ائرشول چی د اکار تراوسه د افغانستان په ځینو ولایتو او ولسوالیو کښی دوام لری .

په ۱۹۹۳ کال کښی د ژبی په علمی سمینارونو کښی ګډون کوونکو استاذانو په پرله پسی توګه داغوښتنه کوله چی ,, د سمینار مواد دی دیوی مجموعی په شکل راټول او د ښی کتنی اخیستلو لپاره دی هغوی

ته ورکړل شي څکه چي د شاګردانو د تدریس په برخه کښي ګټور او موثر دی ›› د دی پرله پسي غوښتنو په اساس د همدی کال په پای کښي د I.R.C د هنګود ښوونی او روزنی د پروګرام استاذانو تصمیم ونیوچي : دا رساله تکمیل او چاپ کړی او بیا یي د ژبی مینه والو استاذانو ته د تحفی په توګه د دی موسیسی ( I.R.C ) د هنکود ښوونی او روزنی د پروګرام له خوا اهداء کړی .

هیله لروچي د دی رشتی علاقمندان د دی مواد و د استعمال په درشل کښی لطف وکړی او مونږ ته د دی مجموعی نیمګرتیاوی د همکاری له مخی په لیکلی یا شفاهی توګه راواستوی .

وَمِنَ اللّٰهِ التَّوْفِيْق

# فهرست

| فصل | عنوان | مخ |
| --- | --- | --- |

| فصل | عنوان | مخ |
|---|---|---|

| فصل | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| | ۲-مسجع نثر | ۴۰ |
| | ۳-روان نثرونه | ۴۱ |
| | ب:- ننني نثرونه | ۴۱ |
| | II نظم: | ۴۲ |
| | دنظم تعريف | ۴۲ |
| | د نظم دولونه | ۴۲ |
| | الف - ملي نظمونه: | ۴۲ |
| | ۱- لنډۍ | ۴۳ |
| | ۲- نيمکۍ | ۴۳ |
| | ۳- چاربيتي | ۴۵ |
| | ۴ - رباعي... | ۴۷ |
| | ۵ - بګتۍ | ۴۷ |
| | ٦- ناري يا ږغونه | ۴۸ |
| | ب:- مشترك نظمونه: | ۴۹ |
| | ۱- غزل | ۴۹ |
| | ۲- بولله يا قصيده | ۵۰ |

| فصل | عنوان | مخ |
|---|---|---|

| فصل | عنوان | مخ |
|---|---|---|

| مخ | عنوان | فصل |
| --- | --- | --- |

| فصل | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| | ط : نه بدلید ونکی نومونه | ۱۴۶ |
| | ضمیرونه : | ۱۵۲ |
| | الف : شخصی ضمیرونه | ۱۵۲ |
| | ــ پیوست « متصل ضمیر » | ۱۵۲ |
| | ــ ناپیوست « منفصل ضمیر » | ۱۵۴ |
| | ــ اضافی ضمیر | ۱۵۸ |
| | ــ ناخپلواك منفصل ضمیر | ۱۵۹ |
| | ب : اشاری ضمیرونه : | ۱۶۰ |
| | ج : استفهامی اوربطی ضمیرونه | ۱۶۲ |
| | د : مبهم ضمیرونه | ۱۶۴ |
| | ــ صفت : | ۱۶۵ |
| | الف : د صفت ډولونه | ۱۶۵ |
| | ب : مجرد وصفونه | ۱۶۸ |
| | ــ مصدر ( زیږنده ) : | ۱۷۰ |
| | الف : حاصل مصدر | ۱۷۳ |
| | ب : د آلی نوم | ۱۷۴ |

| فصل | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| | -فعل : | ۱۷۵ |
| | الف : دحال فعل | ۱۷۷ |
| | ب : مستقبل فعل | ۱۸۰ |
| | ج: دامر فعل | ۱۸۲ |
| | د : ماضي فعل | ۱۸۴ |
| | ۱- ماضي استمراري | ۱۸۴ |
| | ۲- مطلقه ماضي | ۱۸۶ |
| | ۳- نژدې ماضي | ۱۸۷ |
| | ۴- لرې ماضي | ۱۸۸ |
| | ۵- امکاني ماضي | ۱۸۸ |
| | ۶- احتمالي ماضي | ۱۸۹ |
| | ۷- تمنايي ماضي | ۱۹۰ |
| | ۸- تاکيدي ماضي | ۱۹۰ |
| | -قيود : | ۱۹۲ |
| | الف : دزماني قيد | ۱۹۲ |
| | ب : دځای (مکان قيود) | ۱۹۲ |

بسم الله الرحمن الرحیم

اَلرَّحمٰنُ o عَلَّمَ القُراٰنَ o خَلَقَ الاِنسَانَ o عَلَّمَهُ البَیَانَ o

# لومړی فصل



# د پښتو ژبې تاریخچه

## I- د ژبې پیدایښت :

تاسی ته بهتره معلومه ده چې تولی ظاهرا و باطنی څرګندونی پر ته د ژبې ( ویلو ) او بیانو لو څخه امکان نلري . همدارنګه الله ج د انسان د پیدایښت او خلقت سره سم د قران د تعلیم ( لوستلو ) او د ژبې زده کړې ( وینا ) ته اشاره کړیده . او د ژبو اختلا فونه یې د کلمواو لهجوله پلوه د اسمانو نود پیدا ایښت او د ځمکو د طبقو سره یو ځای په خپلو مبارکو ایاتو نو کښې ذکر کړی ، او فرمایلی دی .

وَمِن آیَاتِهِ خَلقُ السَّمٰوٰتِ وَالاَرضِ وَاختِلَافُ اَلسِنَتِکُم وَاَلوَانِکُم

ترجمه : ( ۲۱ سپاره د روم سوره ۲۱-۲۲- ایات )

او د ځینو ایاتو نو د قدرت الهی څخه ، پیدا ایښت د اسمانو نو او ځمکی او اختلاف

دڅېړونکو د ژبو ستاسو (دکلمو او لهجو) او رنګونو د بدلون ستاسو دی .

او همدا رنګه د غوره او بهترینو نعمتونو په برخه کښې چې انسان ته یې ورکړې دی لکه سترګې، ژبه، شونډې او هم یې د مادي او معنوي لار ښوونو یاد ونه کړې ده چې په قرآن عظیم الشان کښې فرمایلي دي :

اَلَمْ نَجْعَل لَّهُ عَيْنَيْنِ ۝ وَلِسَانًا وَشَفَتَيْنِ ۝ وَهَدَيْنَاهُ النَّجْدَيْنِ ۝

ترجمه : (۳۰ پاره - د بلد سورة (۸-۱۱) ايات)

ايا مونږ ندي ګرځولي انسان ته دوه سترګې ، او ژبه او شونډې (د خبرو کولو لپاره)

ايا مونږ ندي ښودلي د خير او شر لارې .

همدا ډول - د خبرو کولو توانايي او قدرت له يو پلوه او د لغتو او لهجو اختلاف د بل پلوه د جهان د پيدا ايښت د غوره شاهکاريو څخه دي .چې په سلګونو ډوله لغتونه ، په زرګونو ډوله نژادي ،محلي او شخصي لهجې ، او د انسانانو تعداد په شمير د غږ (Tone) او په مليارد و الفاظو او کلماتو باندې خبرې کول دي .

مناسب او پرځاى دي چې پخپله خداى په پيدا ايښت د هغوى وويارې ، لکه چې فرمايلي دي «تَبَارَكَ اللهُ اَحْسَنُ الْخَالِقِيْنَ» نو لازم دي چې مونږ يې هم ووايو .

نو په همدی ارتباط غواړو د ژبې په هکله د ځینو ژبپېژندونکو عالمانو او پوهانو نظريې او تعریفونه بیان کړو .

## د ژبې تعریف :

- هغه اواز ونه چې بنیادم پرې خپل مطلب اداکوی عبارت د ژبې څخه دی .

- ژبه هغه ټولنواله پدیده ده چې په ټولنوکښې د انسانانو د پوهولو راپوهولو سبب ګرځي .

- ژبه هغه ټولنواله پدیده ده چې د انسانانو د فکر د پیدا ایښت، ودی او د بشر د تمدن د پر مختګ باارزښته وسیله ګڼل کیږي

- ژبه د انسانانو تر منځ د پوهولو را پوهولو ټولنواله قرارداد ی ده .

- ژبه د انسانانو ممیزه قوه ده .

- ژبه د انسانانو او حیواناتو تر منځ د بیلښت وسیله ده .

- ژبه د ټولو بشری پوهنو، فنونو، هنرونو د زده کړی او څیړلو پخه وسیله ده .

- ژبه د انسانی ، اختیاری ، عادی ، معنی لرونکو کلمو ،

اوانو ونو څخه جوړه شوې ده .

- ژبه د ګړنې انسان دعادي ګړونوعادتو (خبرو ګولو) مجموعه ده .

## لوړې ژبې او ښکته ژبې :

پروفیسر اډینګ ژبې دوه ډوله ښودلې دي :

۱ - ښکته ژبې :- چې لغت يې بيا نيد لاى نشي (اسم ، فعل ، حرف) کښې يې فرق نه کيږي . او ديو لفظ سره به يې د نورو مستقلو الفاظو په لګولو اسم ، فعل حرف جوړيږي . لکه : دافريقې د زنګيانو ، دامريکې د هند يانو او دچين ژبې .

۲ - لوړې ژبې :- هغه دي چې ارتې (پراخې) لمنې لري هرقسم مطلب پکښې اداکيداى شي . او دالفاظو هيجاء ئې هم ډيرې وي . چې د متمدن عالم ژبې د دغه ډول څخه دي داهم دوه ډوله دي .

الف : اوړيدونکې (متصرفه ژبې) :- چې د تصريف اړ و لواو اشتقاق قابليت لري . په کلماتو پورې يې مختاړې او روستاړې ښلې يعنې ځينې ښې د مخکښې له طرفه نه راځي چې عربي کښې

ورته سابقه اروپايي اصطلاح کښي (suffix) او پښتو کښي ورته مختاړي وائي. او ځيني وروسته راځي چي په عربي کښي ورته لاحقه اروپايي کښي ورته (prefix) او پښتو کښي روستاړي وائي. دا ژبي دوه شاخه دي:

اوله څانګه اريائي ژبي دي. اريايان هر ځاي کښي چي اوسيږي هغوي ئې وائي. چي اروپايان ورته هندواروپائي ژبي وائي دا ژبي شمالي او جنوبي څانګي لري. شمالي څانګه ئې د يورپ آريائي ژبي لکه: لاتيني، يوناني، سلتي، اسلاوي او جنوبي څانګه يي د ايشيا آريايي ژبي دي لکه: سنسکرت، ژند، پښتو، پارسي.

دوهمه څانګه سامي ژبي دي چي سامي قومونه يي وائي او پخوانيو قومونو لکه: بابل، اشوريانو، فنيقه او نورو ويلي دي. چي دا په دوه قسمه دي.

ارامي: د بابل ژبه چي سرياني او کلداني د دي شاخونه دي.

عبراني: عربي او حبشي ژبه د دي څانګي څخه دي.

ب: نه اوړيدونکي (غير متصرفه ژبي) د دا ژبي کلک اصول لري او تغير او تبديل نه مني. توراني، مغلي، ازبکي او داسي نوري د دي شاخونه دي.

## هندوارو پائی ژبې (یا آریائی ژبې):

په لوړو ژبو کښې هندواروپائی یا اریائی یوه لویه ژبه ده چې پښتو ددې ډول څخه ده. د الفاظو او مخارجو په لحاظ سره آریائی ژبه په دوه قسمه ده. سیتم او سینتم چه داویش په دې ډول شوی دی چې د سل (۱۰۰) لفظ ئې د تجربې د پاره راخیستی دی او دائې معیار ورته ټاکلی دی او د ټولو آریائی ژبو نه ئې د دې هم معنې الفاظ راغونډ کړی دی د کومو ژبو د الفاظو په سر کښې چې سین راغلی دی.

لیکن نون په کښې نشته هغه د سیتم ډلې نه دی او کومو کښې چې نون راغلی هغه د سینتم ډلې نه دی. مثلاً: سنسکرت کښې سلوته (۱۰۰) سیتم، پارسی کښې سد یا صد روسی کښې ستو یا استو وایې چې نون پکښې نشته نو دا د سیتم ډله شوه همدارنګه په لاتینی کښې سلوته سینتم، انګریزی کښې هنډرید، فرانسوی کښې سانت، جرمنی کښې هنډریډ ویلې کیږی چې په ټولو کښې د نون والا الفاظ راغلی دی نو دا سینتم ډله ده چې نقشه ئې په لاندې ډول ده.

# اریائی ژبې



سیتم
سینتم
سنسکرت
پښتو
فارسی
ارمنی
سلاوی
زوړ پروس
اوستا
د فارس زړه ژبه
پهلوی
الباني
لیتوانی
روسی
سکندنیاوی
توتنی
لاتینی
ډنمارکی
هالنډی
ایتالوی
رومانی
سویډی
سلتی
یونانی
ایلنډی
انګریزی
الماني
فرانسوی
اسپانوی
ناروېژی

دلغت استاذانو د ژبو په خپلوکښنی د زیات تعلق له کبله دوی تقسیم کړی دی . دمثال په ډول د اریائی ژبو لاندینی نقشه وګوری .

| پښتو | پارسی | سنسکرت | اوستا | لاتینی | انګریزی | جرمنی | فرانسوی |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پلار | پدر | پاتری | پیتر | پتر | فادر | واتر | پیر |
| مور | مادر | ماتری | ماتر | ماتەرا | مدر | موتر | میر |
| خور | خواهر | سواچرسوسر | هوګهر | سورور | سستر | شوستر | سور |
| ورور | برادر | بهراتر | براتر | فواتر | برادر | برودر | فریر |

## آریا قومونه د دوی پشت او خوریدنه :

دا مو وویل چې پښتو د هند واروپائی یا آریائی ژبو نه ده .

او د سنسکرت او اوستا خور ده دا هندواروپائی ژبه چې (اندو ژرمانیک) هم ورته وائی د آریاد قوم ژبه وه . دا خور وور قوم د لوی تمدن مالك وو او لوی لوی قومونه د دی د ښاخ نه دی .

دخوریدو او ډیریدو نه مخکې دا ټول قوم یوځای کښنی اوسیده چې دی ځمکې ته ئې « آریاناویجو » د پاك ذاتو مځکه ویله ، دا مځکه چیرته وه ؟ دی کښنی اختلاف دی څوك وائی د بالتیك غاره ، څوك د تورسند شمالی

غاړه، اوځوک د خزر د ند (شرقي او شمالي غاړه) ښيي خو ځيني عالمان وائي چي د دوی اصل ځای د پامیر او چتی مځکی او د آمو سرچینی دی. په هرحال هغه خپل ځای په دوی تنګ شو او تقریباً (۴۰۰۰ ق م) کښي دوی د هغی ځای نه هجرت وکړ. د دی په ارتباط ډاکټر (بی ګیلس) لیکی:

هندوارو پائی نوم په دی اقوامو اول ډاکټر تهومس ینګ (Thomasyoung) ایښی دی البته د (هندو ژرمن) اصطلاح د ټولو نه مخکی یو جرمنی ژب پوه (زبان شناس) باپ کړه د عالم د ژبو قواعد، الفاظ او خصوصیات جمع کړل او دا نوم ئې پری کیښود او په دی ټولی ئې دا نوم کیښود.

ده نه مخکی (سر ولیم جونز) د دی ژبو خپلو کښي مناسبت موندلی وو لیکن دا نوم ئې پری نه وو ایښی.

د دی ژبو ویونکی د انسان د سپین نسل نه دی او د ژبو نژدیوالی ښیي چي دوی یو ځای اوسیدل چي دا د (۲۵۰۰ ق م) خبره ده دوی به ځانته آریا ویلی، د آثارو نه معلومیږي چي د خورید ونه مخکی دی قومو نو یوه ژبه او یو مذهب وه. د ایشائ صغیر په یوغار کښي کومه کتیبه چي موندلی شوی ده هغه ښیي چي په (۱۴۰۰ ق م) کښي د لته د اریا یو قوم میتانی اوسیدل د دی لیک نو مونه د اسی دی لکه آریانو مونه

چې دی، حتی نوموته اوس د هند وارو پالی ژبو کتابونو کښې شته لکه (ایندره) او (ارونا)، یو قوم (کاسی) نومیده چې د کرمان په غرونو کښې اوسیدل په بابل ئې حکومت کړی وه د دوی ژبو کښې هم اریائی الفاظ موندلی شوی دی.

په سنه (۷۰۰ ق م) کښې د آسوری پاچا په کتابخانه کښې د اسرا میزاس (Assaramazas) لفظ لیدل شوی چې همدغه لفظ په اوستا کښې اهورمزدا (Ahuramazda) د لوی خدای نوم دی په سنسکرت کښې تری اسورا (Asara) جوړ شوی دی نو داسې معلومیږی چه د (۱۵۰۰ ق م) د خواوشا پوری د آریا قومونو یوه ژبه او یو مذهب وه.

## باختری آرین:

هندی او ایرانی څانګه :- اریائی قومونه چې خواره شول نو څمونږ خواته هم راغلل او باختر کښې ئې یو بښه تمدن جوړ کړ او د ری څانګی شول.

۱- مرکزی او باختری :- دوی د هندوکش په شمالی او جنوبی برخو کښې خواره شول. اصلی مرکز ئې بلخ، تخارستان، هرات، کابل، کندهار، خراسان او نور وو. او آثار ئې تر بحیره عرب خواره وه.

۲- دوهمه دله په هریوا (هرات) تیرل شول او ایران کښنی آباد شول. او په اومه قبل المیلاد پیړۍ کښنی لې د مادی (madie) په نوم یو حکومت جوړ کړ.

۳- دریمه دله دکابل دخیبر په لاری د هند ځنګلو نو ته لاړه. د آریا قومونو دغه دری لړی (باختری) ایرانی، هندی) څو نیز ژبی سره تعلق لری. مرکزی آرین چي بلخ (باختر) کښنی پاتی وه دوی ډیره ښه مدنیت جوړ کړی وه خپل ملك ته به ئې «اریاورته یا آریاورشه» ویله. اول دا نوم د (منوسمهتیا) په کتاب کښنی راغلی دی. منو یامانو د آریا پلار کنلی شی آریایانو ته «منوزی» هم وائې د دوی په نوم قوانین هم جوړ شوی دی د دوی مرکز بالهیکا. بخدی او بلخ وو.

# اریائې ژبی او پښتو:

د اصلی آریائې ژبی نه هندی، ایرانی، او بخدی ژبی راوتلی دی د دی اصلی آریائې ژبی هیڅ معلومات نه کیږی چي دا کومه ژبه وه؟ او تر کومه وخته ژوندی وه دا اکثر (کوستالوبون) وائې چي دا ژبه تر (۳۰۰۰ ق م) پوری ویله کیده.

د اصلی آریائې ژبی د (۵۰۰ ق م، تر ۵۰۰۰ ق م) پوری تخمین کیږی

وید په (۴۰۰ ق م) خواوشا کښې لیکلی شوی دی او ځینې نور کتابونه هم په همدغه زمانه کښې لیکل شویدی. د هغو ژبه د وید سره نږدې ده مګر بالکل یوه نده. نو معلومه شوه چې د وید ژبه اصلي آریائې ژبه نه ده بلکه د دی نه مخکې هم یوه ژبه وه.

اګرچې اصلي آریائې ژبه معلومه نه ده. مګر د ټولو ژبو په مطابق ئې اندازه معلومیږی. او د مخکښې بیان څخه به ثابته شي چې پښتو لکه د سنسکرت او اوستا د هغې اصلي ژبې لورده لکه څنګه چې وویلی شول چې مرکزی آریایان بلخ (باختر) کښې پاتې شول. د وی یو لوی قوم (بخت، پکهت، پښتون) وو. د دی وجهې نه اصلي آریائې ژبه زیاته د دوی حصه کښې راغله.

موږ ذکر کړه چې پښتو د آریه ژبې لورده په دی سلسله کښې پکار دی چې هغه ټول الفاظ راجمع کړی شي چې کوم آریائې ژبو کښې شریک دی. او د هغې نه د اصلي آریائې ژبې اندازه معلومه شي. او دا خبره به ښه واضح شي. یوه خبره د غور لایقه ده او هغه دا چې آریا قبیلې ټولې بخدی کښې جمع وی بیا خوری شوی څوک هند ته لاړی او سنسکرت یې شروع کړه او څوک ایران ته لاړی او زړه پارسي یا پهلوی تری جوړه شوه لیکن څوک چې په خپل اصلي ځای پاتې شول دوی کومه ژبه ویله؟

د وی کومه ژبه چې ویله هغه به اصلي آرین وی. مؤلف وائي چې زما دا فکر دی چې دوی "پښتو" ویله دوی ورسته تر هند وکش راتیر شول او د بخدی په نوم بخت، بکهت، پښتون مشهور شول او هغه اصله ژبه چې تولو آریایانو هیره کړه دوی باقي وساتله.

تر سنه (۱۴۰۰ ق م) پوری بخدی آرین موجود وو. او د پکهت په نوم د اباسیند غاړو کښې او سیدل لکه چې نوم (وید) نه معلومیږی.

چې په سنه (۱۰۰۰ ق م) کښې باختر کښې نوی ژبه پیدا کیږی چې (ژند) ئې نوم دی او هم دغه ورځو کښې یونانی مورخ (هیرودوت) د پکهت یا پاکتو سین قوم د اباسیند په غاړو بنودلی دی نو معلومیږی چې بخدی قوم سره د خپلې ژبې د اباسیند غاړی او د شرقي طرف غرونو ته راغلل او په سنه (۱۴۰۰ ق م) نه تر (۱۰۰۰ ق م) پوری د هغه نوم په نسبت په (بخت، پکهت) مشهور شوه زړه ژبه ئې د ځان سره راوړه او باختر کښې نوی ژبه جوړه شوه.

## پښتون په وید کښې:

مونږ وویل چې آریائې قومونه بخدی ته راغلل د هغه ځای نه هندی او ایرانی شاخونو باندی تقسیم شول په دغه بخدی آریاو کښې (بخت، پکهت، پښتون) قوم وه. پښتو د هغه ژبه ده.

نو وید د پښتون قوم سنه (۱۴۰۰ ق م) بیانوی د دی وجهې نه دا یوه

تاریخي وثیقه ده. د پښتون ذکر په وید کښې څلور ځایه راځي.
د اڅلور واړه ځایه د جنګ بیان دی او پکښت، پښتون د بهادري،
جنګي توب او به خپل رب النوع (اَنْدَرَا) د مهرباني ذکر دی دوید نور
ذکر کړې قبایل هم تر اوسه موجود دي لکه د (آسُو) سلیمان خیلو کښې
دي. بړیڅ د قند هار خواوشا کښې آباد دي د هغوی څه نسل پنجاب کښې
هم شته.

نو د امعلومه شوه چې پښتون قوم کم تر کمه (۱۴۰۰ ق م) نه مخکې
موجود وه نو دا په اثبات رسوي چې د و مره لوی قوم بې د یوې ژبې نه
نشي پاتې کیدی. د غه قوم ته چې د کومې ژبې نسبت شوی هغه پښتو ده.

## II - د ادب پیژندنه :

وائي چې بنیادم یو نور او جامه یې دوهم نور، د غسې ژبه یو
نور او ادب یې دوهم نور دی، کله چې ژبه د ادب په ګاڼه بنایسته شي
نو په هغې کښې را ښکون او ښکلا یو ځای ستر ګکونه و وهي.
د اخبره هر چا منلې ده، ژوندی اولس به دیو ژوندی ادب خاوند
وي او ژوندی ادب په یوه ژوندی اولس پورې اړه لري. د ادواړه یو
تر بله پوخ تړون او ټینګ پیوستون لري لکه چې وائي :

- ادب د ژوندانه تصویر او تفسیر دی .

- ادب د یوه اولس د فکری ځلا او ړنانوم دی .

- ادب د یوه ملت د پوهې او ځیرکی ننداره ده .

- ادب د یوی تولنی او خیالونو او فکرونو هنداره ده .

- ادب د حقیقت رڼا او د صداقت برېښنا ده .

- ادب د ژوندانه لاره ښود او بومیا ده .

که څه هم ځینې کسان ادب له ژوندانه او سیاست څخه جلا کوی مګر دا نظریه په عملي ډګر کښې کوم ارزښت نلري. البته په ظاهر کښې «ادب د ادب د پاره» اصطلاح هم شته خو یوه تشه ادبي توته هم د ژوندانه د تصویر او تفسیر له چوکاټ څخه نشي وتلای، که د مادی شیانو رسم او انځور وی نو د ژوند تصویر، او که د جذباتو او احساساتو ښودنه او څرګندونه وی د ژوند تفسیر بلل کیږی .

هر کله چې ژوند او سیاست سره لازم او ملزوم او یو تر بله تړلی دی نو ځکه د ادب او سیاست تر منځ خامخا ارتباط مزی غزیدلی دی.

ژوندی ادب په دماغو کښې د سیاست رڼا اچولی شی او اساسی قوت په ادب کښې د ودی او ترقی سا، پوکولی شی .

ادب انسانی ژوند له فنا څخه ساتی او اولسونه له ورکیدو څخه

ژغوری . لکه چې وائي «ادب د انسانیت محتسب دی . ادب انسان ته دخپلواك ښکلي او سپیڅلي ژوند لار ښیي اوله تیرو تنو څخه ئې ساتي . ربښتني ادب د زماني او حالاتو تابع او مریي نه وی بلکه زمانه او حالات دهغه تابع وی» .

ښه اولوړ ادب هغه دی چې دخلکو احساسات وخوځوی، خویونه اوعادتونه ئې پاك اوصفا کړی او دخیر او نیکۍ په لوری ولیږدوی .

منلی او سپیڅلی ادب هغه دی چې هرڅوك دخپل حال سره سم د ژوندانه په لاروچارو وپوهوی او دژوندانه غرض او مقصد په یوه ښه قالب کښې خلکو ته وړاندی کړی . د ادب مقام د بشر په تاریخ کښې ډیر زیات اولوړ دی .

د انګلیس ملت د (شکسپیر) آثار دهند له مملکت څخه زیات ګڼی دیوه عالم وینا ده څوك چې خپل افکار په ښه ډول نشي ښرګند ولای معلومیږی چې دده افکار په اصل کښې کوم سم ترتیب او تنظیم نلری .

د دنیا هرلوی مشراولیډر ترڅو چې ادیب نه وی یعنی ښه وینا او لیکنه ونه کړی هغه هیڅکله د مشری اولیډری جګ مقام ته نشي ختلای . په دې لحاظ ویلای شو چې ادب نوی ژوند جوړونکی او د قومونو د لوړ تیا زینه ده .

د ادب کلمه په عربی ، اردو ، پارسی ، پښتو اونورو ژبو کښې یوشان

استعمالیږي. د دې کلمې نوې څانګې او ریښې هم په دغو ژبو کښې شته مګر په عربۍ کښې یې شمیر زیات دی لکه: ادبیات، ادیب، مؤدب او نور په عربي کتابو نو کښې د ادب لغوي معنیٰ ګانې دا دي:

۱- بلنه، ۲- پوهه او ځیرکي، ۳- دحد او اندازې ساتنه.

ځینې کسان د ادب په مفهوم کښې ښېګڼه، ښه سلوك، نیك چلند ښه خوی، سړیتوب، تعظیم، حیا، پالنه، تربیت هم شامل بولي. په فني لحاظ د ادب د پاره زیات تعریفونه شوي دي.

ځینې وایي: هغه تعبیرونه چې خیالونه او فکرونه میدان ته راباسي د ادب فن بلل کیږي. څوك وایي: چې په ښه توګه او خوند ور ډول دانسان ذ ښتیني افکار او احساسات ښکاره کول او بیانول ادب دی. ځینې وایي چې: ادب هغه فن دی چې د پاکو احساساتو څوړلو سره د ټولنې خلك د خیر په لوري بیايي او دوی ته د خیر معنی ورښیي (۱) څوك وایي چې د فطرت د ښایست د کتنو نه پس چې زمونږ په دماغ کښې کوم ښایسته خیالونه ګرځي د هغو ښکاره کول ادب دی. ځینې وائي چې: هغه علم دی چې د هغه په زده کولو سره سړی کولای شي چې صحیح شعر ووائي او ښه لیکنه وکړي ـــــ او د صحیح او غلطې خبرې ښه او بد و پیژني. ځینې وایي چې: ادب هغه پوهې او زیرکۍ ته وائي چې د هغې په واسطه سړی د خطا نه بچ شي.

---

(۱) د سید جمال الدین عروة الوثقی

ځینی پوهان د ادب په لمن کښی ټولی بشري پوهنی را نغاړی او ځینی یی
په یو څو خاصو فنونو پوري محدود بولی .
په اوسني عصر کښی ادب د ژوندانه تفسیر او لاره ښونکی گڼل کیږي .
یعنی څرنگه چی ادب د ژوندانه هنداره بولی نو د غسی یی د ژوندانه د
ښه کولو یوه پخه وسیله هم گڼی .
کوم کلام او وینا چی په انساني ژوندانه کښی ذوق او خوند پیدا کوی
ژوندانه ته وده او ترقي ورکوی او خلک د ښایست او تناسب په چوکاټ
کښی د ننه د پوهی او نیک مرغی خواته رابولی هغه ادبي فن او ادبي پوهنه ده .
په ادب کښی هم د جمال او ښایست پلټنه کیږي او هم پکښی د ژوندانه
پېښې او پېښې اړخونه را اخرگندیږی .

## د ادب عمومي ډولونه :

ادب په عمومي قسم په دوه ډوله دی .

۱ - طبیعي ادب :- چی نفسي ادب هم ورته وائی : په دی کښی ټول
اخلاقی فضیلتونه شامل دي چی د بنیادم په خیټه کښی د خدا ی (ج)
له طرفه ایښودل شوي دی لکه : سخاوت ، ځوانمردی او نور .

۲ - درسي او کسبي ادب :- هغه ادب دی چی د لوستلو او زده
کولو په ذریعه حاصلیږی . د دنه مراد دا دی چی په ښه توگه سره
د وینا د لیکلو او د خپل مطلب د ښکاره کولو طریقه پری زده کړای شی .

د درسي ادب دوه ډوله دي: ادبي علمونه په دوه ډوله دي.

۱- اصولي ادب، ۲- فروعي ادب.

اصولي ادب لکه: لغت: هغه علم دی چې د لفظونو د مفرداتو د موادو او اجزاو څخه خبرې کوي. په دې علم کښې د ابنو دلې شی چه د الفظ دکومې معنې لپاره اېښودلې شوې دي.

صرف: مار فولوجي، مور فولوجي (گرېوهه) دیوې ژبې د مورفیمو (کلمو) د جوړښت، طریقو او د کلمو د ډولو او حالاتو څېړنې او تشریح کولو ته وائي.

نحو: مانند، مثل، هغه علم دی چې د جملاتو د جوړښت څخه بحث کوي.

اشتقاق: دیوې ژبې د گرامري قوانینو سره سم د یوه بیخي څخه د جوړښو کلمو څرگندونه، جوړونه او د ایستنې څخه عبارت دي.

معاني: هغه علم دی چې د لفظ او معنی د مطابقت څخه بحث کوي.

بیان: کله چیرې یو مطلب په څو ډولو بیان شي چې عین معنی ولري دې ته د بیان علم وائي.

عروض: د شعر میزان، د بیت د لومړی مصراع وروستی رکن، هغه علم دی چې د شعر داوزانو کره او ناکره (صحیح او فاسد) پرې پیژندل کیږي.

قافیه:- وړوسته، شا، څپ، وړ پسې تلونکې، هغه علم دی چې د دوړونو له وړ ستیو څخه بحث کوي .

فروعي ادب :

خط:- چې د لیکنې او خط په نقشونو او شکل باندې بحث کوي د خط علم دی .

انشاء:- که بحث په نثر پورې خاص وي دغه د انشاء علم دی .

د شعر فن:- که چیرې بحث په منظوم کلام پورې خاص وي نو دغې ته د شعر فن ویلای شو. یا هغه علم دی چې د منظوم کلام څخه بحث کوي .

محاضره:- که د نثر او نظم د واړو څخه بحث کوي هغې ته د محاضرې علم وائي .

تاریخ:- هغه علم دی چې د تیرو شوو ماتو واقعات د وخت او مکان د قید په اساس بحث کوي . یا په بل عبارت : هغه علم دی چې په ماضي کښې د بشري ټولنو د ښوند په هکله په مستند ډول معلومات راکوي .

د ادب ډولونه د نوعیت په لحاظ:- ادب د نوعیت په لحاظ په دوه ډوله دی.

۱- نثر:- پاشل، تیتول، هرهغه کلام چې وزن او قافیه ونلري نثر بلل کیږي .

۲ - نظم :- پیل ، هرهغه کلام چې وزن او قافیه ولري نظم بلل کیږي .
نور اضافي معلومات د نثر او نظم په باب په څلرم فصل کښې ذکر شوي دلته
یې نور توضح ته ضرورت نه لیدل کیږي .
علم ادب :- د ادب علم په اوله معنیٰ د اخلاقو علم ته وایي او په دوهمه معنیٰ
هم هغه پوهه ده چې د ویلو ، لیکلو او ښې وینا (خطابت) طریقې پرې
باندې زده کیږي . یا په بل عبارت د نثر او نظم ښه والی ، ښکته والی ،
کره او ناکره پرې معلومیدای شي .
ادیب :- ادیب په لغت کښې پوه ، زیرك ، رابلونکی او د اندازې
ساتونکي ته وایي ، او په اصطلاح کښې هغه څوك دی چې په ادبي علومو
کښې د پوهې خاوند وي او د غو علومو په اصولو برابر نظم یا نثر ویلای
او لیکلای شي هغه ته ادیب وایي .
ادبیات :- د بشر هغه فکري او هنري نشأت او لطافت چې د ژبې
په وسیله دیوه او یا بل اولس د کلتور او د دوی ښکارندوي او ممثل
وي ادبیات بلل کیږي . تردې ځایه مو د پښتو د ژبې د تاریخچې او ادب
په باب په لنډ ډول معلومات ورکړل ، څرنګه چې د ژبې په زده کړې کښې
لغتونه هم ډیر اهمیت لري نو غواړو چې په دوهم فصل کښې د لغتونو په
باب هم معلومات ورکړو .

# دوهم فصل

## لغتونه

لغتونه د لغت جمع ده او په معنیٰ دکلی (معنی دار لفظ) ، اصطلاح، ژبې او د هر قوم کلام ته چې په هغه باندې خبرې کوي ، چې په عربي کښې ورته «لغة» وائي.

باید دې خبرې ته بنه متوجه شو چې لغت په ادبي علوموکښې یو ځانګړی علم دی او په اوس وخت کښې یې دادبي علومو دیوې خاصې رشتې په شکل مطالعه کوي ولې مونږ . دلته د لغتونو د زده کړې په برخه کښې غږیږو .

### ۱ـ د لغتونو معنیٰ د جملې له مخې :

اکثره وخت د لغتونو د تدریس څخه هدف د لغتونو معنی او یا په جمله کښې استعمال وه، حال داچه نور فعالیتونه هم د لغتونو د بنه تدریس لپاره امکان لري . او دا به هم بنه وي چې شاګردانو سره د تدریس په د غه لاره وچار وکښې کومک وشي .

مثلاً : یوازې په مستقیم دول معنی کولو څخه به دا بنه وي چې متفاوتو جملو کښې یو لغت استعمال شي ترڅو چې شاګردان د نوموړې لغت په مفهوم او ډیرو متفاوتو معناو باندې پوه شي . لکه :

توړه : احمد په جنګ کښي توره وکړه .

توره : د احمد توره ډیره اوږده ده .

برید : توریالی مجاهد په د ښمن برید وکړ .

برید : د افغانستان او پښتونستان ترمنځ برید معلوم دی .

ړانړ : په باغ کښي ړانړ ړانړ ګلونه موجود دی .

رانړ : تاماته خپل ړاز ویلی .

... : ...

## ۲ـ مترادف :

مترادف په لغت کښي هم معنی، هم ردیف، یا څو کلمې چې په یوه معنی وی او معنی یې یو شان ویل کیږی او لیکل کیږی عبارت د مترادف څخه دی .

یا څو کلمې چې په الفاظو او لیکلو کښي فرق و لری خو په معنی کښي یو شان او یو مطلب افاده کړی عبارت د مترادف څخه دی .

نو لازم دی چې کله کله لغتونه د مترادف په ډول هم د شاګردانو سره کار وشی او په بعضی وخت کښي یو څو کلمې شاګردانوته ورکړشی تر څو مترادف یې پیدا کړی مثلاً :

برید = ... ، ... ، ... ، ... ، «حمله، هجوم ، یرغل»



سارى = ... ، ... ، ... ، ... «سيال ، مثل ، مانند ، پەشان »
پوښتنه = 〃 〃 〃 〃 〃 «كوښكنه ، تپوس ، سوال »
رويه = 〃 〃 〃 〃 〃 « رفتار ، سلوك ، كردار »
گناه = 〃 〃 〃 〃 〃 « بدكار ، نافرمانى ، جرم »
پارسا = 〃 〃 〃 〃 〃 « زاهد ، متقى ، پرهيزگار »
اساس = 〃 〃 〃 〃 〃 « بنياد ، تهداب ، بيخ »
پند = 〃 〃 〃 〃 〃 « حكمت ، نصيحت ، توصيه »
لطف = 〃 〃 〃 〃 〃 « شفقت ، مهربانى ، زړه سوى »
سوكاله = 〃 〃 〃 〃 〃 « ارام ، اسوده ، هوسا »

تمرين : دلاندى كلمو مترادفى كلمى پيدا كړى !

فقير =

هسك =

مقام =

فضل =

چرچى =

سليس =

دانگل =

ستونځی =

تلوسه =

کټ مټ =

شهامت =

ویاړ =

## ۳- ضد :

ضد په لغت کښې مخالف، ناسازګار، هرهغه شی چې دیوبل مخالف وی او په اصطلاح کی هغو کلموته وائی چې پردوو مختلفو معنی کانو دلالت وکړی. ( معنی یې یو دبل معکوس وی) .

نو داهم لازم دی چې کله کله شاګردانو ته ځنې لغتونه ورکړشی چې هغوی ئې ضد لغتونه پیدا کړی ترڅو دکلمو اولغتونو دضد سره هم آشنا شی .

| | |
|---|---|
| عادل - ظالم | ځوړ - لوړ |
| حلال - حرام | پیل - ختم |
| کرکه - مینه | ستر - کوچنی |
| درنه - سپکه | سمسور - وران |
| فقیر - غنی | دنیا - عقبیٰ |

علم - جهل          غلامي - سرداري

تمرين : دلاندي کلموضد کلمې پيداکړی !

| | |
|---|---|
| ثواب | پوه |
| فضل | ضرر |
| اتحاد | پيشوا |
| دښمن | قهر |
| سلطان | وصلت |
| کرغیړن | مشغول |

## ۴ - هم ريشه کلمې :

ريشه په معنیٰ د بيخ ، بنياد ، اصل . او دګياه پيژندنې په اصطلاح کښې : هغه اصلي رګ يا تيغ يا تار چې د تخم څخه راوځي او په ځمکه کښې ښکته ځي او دهغې په وسيله سره ګياه خپله غذا او اوبه د ځمکې څخه اخلي عبارت د ريښې څخه دی .

نو ويلای شو چې هم ريشه لغتونه هغه لغتونو ته وائي چې په اصل ، بيخ او بنياد کښې سره شريك وي .

نو دا هم ضروري ده چې د يو لغت د معنیٰ د پيدا کولو او د شاګردانو د ذهن د انکشاف او پراختيا په خاطر د هم ريشه کلمو څخه کار واخستل

شي. مثلاً: «اړه» غواړو چې د دې معنیٰ د هم ریښه کلمو له مخې پیدا کړو نو خپلو شاګردانو ته وایو چې د اسې نورې کلمې وواییٍ چې د «اړه» سره هم ریښه وي .

اړیکې، اړتیا، اړشوم، اړشوي، اړکیدل، اړبه شم، اړبه شي... اوس وواییٍ چې د کوم یوه په معنیٰ پوهیږې. شاید شاګردان د پورتنې کلمو څخه د یوې په معنیٰ پوه شي او د کلمې اصلي معنیٰ هم د همدې کلمو په مرسته پیدا کړې لکه:

خوړل:- خوړم، وبه خوړم، خوړې، وبه خوړې، خوراک، خوړې وبه خورې، خواړه ...

کتل:- کتلې، وکوت، کتلې وه، وبه ګورې، ګورې، . . . . .

ځنبل:- ځنبم، وبه ځنبم، ودې ځنبل، وځنبه، مه ځنبه، نه ځنبې . . . . .

ویاړل:- ویاړ، ویاړم، ویاړې، ویاړئ، ویاړلې، وبه ویاړم . . . .

ژړل:- ژړا، ژړاندوکې، ژاړې، ژاړم، ژاړئ، ژړونکې . . . .

رسول:- رسوم، رسوئ، وبه رسوم، وبه يې رسوي، رسولې.....

خندل:- خندا، خاندم، وبه خاندم، ودې خندل، مه خانده .....

تمرين: دلاندي کلمو هم ريشه کلمې پيدا کړئ!

وړل:

اوبدل:

استول:

تلل:

لټول:

تړل:

لمبل:

شکول:

## ۵ - متشابه:

متشابه په لغت کښې هم مثله، هم جنس مګر په اصطلاح کښې دهغو کلمو څخه عبارت دي چې په شکل، تعداد د تورو، ترتيب د تورو او د تورو په حرکتونو کښې يوشان وي. چې په دوه ډوله دي:

الف) تام متشابه:

د هغو کلمو څخه عبارت دي چې په شکل، تلفظ، د تورو په تعداد، ترتيب د تورو او حرکتونو کښې يو ډول وي مګر په معنی کښې فرق ولري لکه:

پت - پت = چې په شکل، تعداد د تورو، ترتیب د تورو او په حرکاتو
کښې پوشان دي مګر په معنی کښې د بیلو بیلو غرضونو لپاره راوړل کیږي.
چې اول پت د (عزت) په معنی او دوهم پت د (پشم) په معنی راغلی دی.
چه دغه کلمو ته متشابه تام وایي.

ب، ناقص متشابه:

عبارت د هغو کلماتو څخه دي چې د پورتنی شرایطو څخه تغیر وکړي مثلاً:

رَسَوْلَ - رَسُوْلَ :- چې په حرکاتو کښې یي فرق وکړ.

راز - ناز :- چې په تورو کښې یي فرق وکړ.

وَيْ - يُوْ : چې په شکل او ترتیب د تورو کښې یي فرق وکړ.

مثال:

| تام متشابه | ناقص متشابه |
|---|---|
| خته - خته | رَسُوْلَ - رَسَوْلْ |
| لُوْرَ - لَوْرَ | مره - مره |
| کبله - کبله | پنډ - پنډ |
| ........: | چغ - غچ |
| | پت - تپ |

## ٦ - مفرد او جمع :

کله کله د شاګردانو د ښې زده کړې په خاطر د کلمو د جمع او مفرد د پېژندلو په باره کښې هم په هغوی تمرینونه ترسره شي. او هغه داسې چې کله مفرد کلمې ورکړ شي ترڅو جمع ئې پیدا کړي او کله جمع کلمې ورکړ شي ترڅو مفرد ئې پیدا کړي.

| مفردې کلمې - جمع کلمې | جمع کلمې - مفردې کلمې |
|---|---|
| لار - لارې | میندې - مور |
| قلم - قلمونه | کورونه - کور |
| چرګ - چرګان | لوڼې - لور |
| دوبي - دوبیان | ګټې - ګټه |
| هلک - هلکان | ژړاګانې - ژړا |

تمرین : د لاندې مفردو کلمو جمع او د جمع کلمو مفردې پیدا کړئ!

| | |
|---|---|
| ونه | غوښې |
| سړی | خټې |
| بوتل | ستورې |
| سر | باباګان |
| کتاب | موچیان |

| | |
|---|---|
| کتب | مسلمانان |
| خندا | مله |
| چوکی | پښتانه |
| خوږ | لاسونه |
| تخته | |

یادونه :

دا هم باید وویل شي چي ددې فعالیتونو سره د تعلیمي نصاب کتابونو د اول ټولګی څخه ترنهم ټولګی پوري لغتونه د پوړ تېنیو تیر شو و فعالیتونو به د ول لست او په د مجموعه کښي لیکل شوي وای خو د وخت د کمي او په نورو دیرو اتلونکي کښي د تعلیمي نصاب د تغیر له کبله مو ددې کار څخه ډډه وکړه ددې په خاطر چي په راتلونکي کښي زموږ ه سواند استاذان دا کار په ښه توګه ترسره کړي او مونږ خپل کار په دغه ځای کښي د لغتونو په برخه کښي پای ته رسوو.

څرنګه چي د لغتونو بحث په مختصره توګه پای ته ورسید نو لاندې ده چي د قرائت فصل شروع کړو.

# دریم فصل

# لوستل

I) قرائت :

قرائت په لغت کښې لوستل، لوستل د قرآنکریم، کتاب یا وچپانې دی. چې د تعلیم او تربیې له نظره هغه د ول آموزشي فعالیتونو ته ویل کیږي چې ښوونکی یا شاګرد د تدریس په ساحه کښې د تدریس په غرض، موضوع یا مضمون په مناسب اواز د کتاب له مخې لولي. چې د غې عملیې ته په بل عبارت کښې لوستل هم وایي.

د مناسب اواز نه غرض د پښتو په ښه کښې د توروو د اوازونو مراعات کول دي د قبول شوو مخارجو په نظر کښې نیولو سره. خصوصاً دقت کول د هغو حروفو په باره کې چې مشابه او نژدې غږ ونه لري او هم د حرکاتو (خوځندو) مراعات کول او همدارنګه د جملې برابر پیوست او روان لوستل او یاد مکث، د رنګ او نورو موارد و، حالاتو او علامو پاملرنه کول دي.

همدارنګه صحیح لوستل د حالاتو او موقع په اساس چې

انسان په هغه ځای کښې واقع وی. مثلاً: په بیانیه جمله کښې چې لوستونکی دویونکی په حیث ویناکوی باید په آرام او عادی حالت یې قرائت کړی مګر د استفهامیه جملې آخراوپای باید په شدت او تیزی سره ولوستل شی ترڅو چې پوښتنه ښه واضح شی.

ندایي او تعجبي جملې په داسی ترتیب ولوستل شی چې اوریدونکی مطلب (خطاب) التجا، تعجب او حیرانتیا د ویونکی د ویلو او اوریدلو نه درک کړی.

د شعارونو او نورو ادبي نظمونو په برخه کښې د پوړ تینو ویل شوشیانو په ځنګ کښې چې د قرائت په برخه کښې وویل شول په خاص ډول د آواز شدت، نرمول، ټیټول او لوړول هم په نظر کښې ونیسو چې دا ټول په لوستلو (قرائت) کښې ډیر مهم او مؤثر عناصر بلل کیږی. په آخر کښې په خلص ډول ویلی شو چې د عبارتو او جملو د ویلو او لوستلو په وخت کښې د آواز ځرنګوالی او د مناسبې قیافې نیول، کله چې اوریدونکی ته یوه موضوع اوروو ډیر تأثیرلری نو لازم دی چې هغه په لاندی ډول توضیح کړو.

- بیانیه جملې او عبارتونه په ورو، آرامی، روانی او په آخر کښې نرمی (زیر) لوستل کیږی.

- استفهامیه جملې او عبارتونه، تیز او اکثره وخت په آخر کښې په لوړ اواز او بم ویل کیږي.

- تعجبي، ندائي جملې او عبارت، کله ډیرې نرمې او په قراره او کله ډیرې لوړې او تیزې ویل کیږي ترڅو هغه حالت د ویونکي او اوریدونکي او کتونکي درک کړي.

- شعرونه او نظمونه که جنګي، عشقي، رزمي، بزمي یا نور وي نظر په هغه خپل کیفیت او نوعیت سره لوړ، ټیټ، قرار، ورو، نرم، زیر او بم ویل کیږي ترڅو په اوریدونکي باندې ښه تأثیر وکړي.

علامې او اشارې (تنقیط) سره د خپلو خواصو په ډېر ښکله (لوستلو) کښې ډیر کومک کوي چې نوموړې علامې او اشارې د درې په برخه کښې به مفصل ډول تشریح شوي.

څرنګه چې د قرائت موضوع په عام ډول سره که نثر وي یا نظم په خپل نوبت سره پرې بحث کیږي نو اوس لازم ګڼو چې د نظم معنی کول او په نثر بدلول لږ ترڅیره لاندې ونیسو. چې دا هم د شاګردانو د زده کړې په برخه کښې کومک کوي او مهم دي.

## II، د نظم معنی او بدلول یې په نثر سره:

شاید چې د نظم معنی او په نثر بدلولو کښې ډیر مهم مطالب او

نکات د ادبیاتو له نظره د ژبې د عالمانو او ادیبانو سره موجود وي لکه چې ویلي یې دي «اَلْمَعْنیٰ فِي الْبَطْنِ الشَّاعِرِ» دا په د معنیٰ چې اصل معنیٰ د شعر د شاعر په زړه کښې وي یعنې دا معلومه نه ده چې شاعر د غه شعر د څه په وجه د کوم احساس له مخې ویلې خو څوك نشي کولای چې د شاعر د غه وجه او احساس پیدا کړي. مګر هغه څوك چې د غه شعر معنیٰ کوي شاید د علمي قانون او دستور په اساس یې په خپل فکر سره د هغه په تحلیل معنیٰ کړي خو امکان لري په اصله معنیٰ چې د شاعر په زړه کښې وي نه وي تللی. خصوصاً مونږ د دغې لاری نوي علاقمندان مینه لرو چې د ادب د باغ او چمن ځنځ د یو سیل بین په صفت د ادب ګلونه د مشق او تمرین لپاره راټول کړو ترڅو خپل ځانونه د همدې مکتب شاګردان وبولو نه دا چې په د غه لوی کار د لویانو کښې مداخله وکړو او یا مو د ادب د غه لوړ مقام ته بې ادبي کړې وي.

هیله لرو چې د دغه فن او مسلك پوهان زمونږ د غه کار د یو خدمت په شکل وګڼي داسې نه چې مونږ د دوی په کار کښې لاس وهنه کړې بلکه مونږ خپله دغه مسلك ترې او علاقه لرونکي یو. نو لازم ده چې د تیر وکار ونو په ارتباط د شعر معنیٰ کولو او د نثر بد لولو په ارتباط د غه لاندې ټکي په نظر کښې ولرو:

- شعر او نظم باید صحیح ولوستل شي ځکه چې د لوستلو سهوه په معنیٰ کښې د اشتباه سبب ګرځي.

- د لغت معنیٰ کول په خپل ځای کښې چې دغه بحث مخکې تیر شوی دی،
د لغت معنیٰ د نظم په معنیٰ او په نثر بدلولو باندې مستقیم تاثیر لري نو
لازم ده چې د لغت معنیٰ ته ښه متوجه واوسو.

- د شعري اصطلاحاتو په باره کښې معلومات ضروري دي چې د شعر د
معنیٰ او په نثر بدلولو وخت کښې ترینه ګټه واخستل شي.

- په ټولو معنوي او لفظي صنایعو، تشبیه ګانو، استعاره واو ادبي کنایو د
بدیع او بیان د علم مطابق ځان خبرول او پوه کول ضروري دي تر څو د شعر
د معنیٰ، تحلیل د مطلب پیدا کولو او په نثر تبدیلولو کښې ورڅخه کار واخلو.

- د صرف او نحو په باره کښې هم معلومات درلودل ضروري دي چې د
جملو جوړولو، عبارت لیکلو، معنیٰ کولو او د نثر بدلولو په وخت کښې د صرف
او نحو په قاعدو ولاړ شو.

- د شاعر، محیط، فرهنګ، اجتماع په باب چې شاعر په څه ډول د هغې څخه
متأثر شوی هم معلومات باید ولرو ځکه چې د شعر د معنیٰ کولو په وخت کښې
ډیره مرسته کوي.

- د علم او ادب د خاوندانو سره تماس او مجلس هم د سړي سره مرسته
کوي تر څو د هغوی د عالی افکارو او معلوماتو په رڼا کښې موضوع ښه ترجمه
شي.

- خپله د ترجمه کوونکي مينه او علاقه د اجتماعي او روانی حالاتو له
پلوه هم په دغه کار (ترجمه) ښه تاثير لري.

دا هم بايد ووايو: هرهغه څوك چي نظم يا شعر معنیٰ او په نثر تبديلوی
علاوه په پوره ته نکاتو سره کولای شي چي د معنیٰ کولو په وخت کښي موضوع
ښه تشريح کړي، مطلب او نتيجه يې د معنیٰ سره سم يا په ځانګړي توګه
بيان کړي. مګر کله چي يې په نثر تبديلوی لازم ده چي د تحت الفظي ترجمي
په شکل مخ په وړاندي لاړ شي او د ډيري تشريح څخه ځان وژغوري
جمله بندي بايد داسي وکړي چي د شعر مطلب او مفهوم پوره وساتي او
برسيره په مطلب او مفهوم عبارتونه په ګرامري قاعدو او ادبي ښايست
سره بيان کړي.

يادونه:

قرائت د زده کړي او د ژبي د طبيعي ودي په اساس لاندي مرحلي لري:
۱- اوريدل: ښوونکي يا يو تکړه شاګرد موضوع د کتاب له مخي په لوړ
اواز لولي او نور شاګردان بي له دي چي کتاب ته وګوري غوږ نيسي او
موضوع اوري ((څکه چي ماشوم د مور په رحم کښي هم اواز ونه اوري)).
۲- ليدل: بيا ټول شاګردان کتاب ته ګوري او يو شاګرد يا ښوونکي
موضوع د کتاب له مخي لولي کله چي لوستل پای ته ورسيدل

نو بیا تول شاګردان په پټه خوله موضوع مطالعه کوی او د مشکل
په وخت کښی خپل لاس پورته لوی او د ښوونکی څخه مرسته
غواړی ,, ځکه چی ماشوم وړوسته له زیږید لو څخه سترګی
خلاصوی او ګوری ,, .
۳ - لوستل :- په دغه وخت کښی ښوونکی په شاګردانو درس
توبه توبه لولی ,, ځکه چی ماشوم وروسته د لید لو څخه په ژړاپیل
کوی یعنی د ویلو وسایل په کار اچوی او د تیر و شو و مراحلو د انکشاف
په اثر، فکر، پیژند ګلوی او د ویلو تمرین شروع کیږی ,, .
۴ - لیکل :- پورتنی تیری شوی مرحلی خپل لوړ سرحد ته رسیږی
او پر مختګ کوی ,, په همدی ترتیب شاګرد کولی شی چی لیکل وکړی ,,.
نو لازم دی چی د قرائت په تدریس کښی پورتنی مرحلی په نظر
کښی ولرو . د دی لپاره چی پوره معلومات په دغه باره کښی پیدا
کړو نو لازمه ده چی د نظم او نثر په ویلو چی دا هم د ژبی (لسان)
یو غوره بحث دی پیل وکړو .

# څلرم فصل

## نثر او نظم

### I: نثر :

د نثر تعریف:- نثر عربي کلمه ده چې معنی يې پاشل او شیندل دی.
او په اصطلاح کښې هغه وینا چې تول، وزن او قافیه ونلري نثر يې بولي. یا په بل عبارت نثر تولولیکنیو (تحریري) او ګړنیو (شفاهي) څرګندونو ته وایي چې منظمه آهنګواله بیلګه ونلري.

### د نثر ډولونه :

په پښتو کښې نثر په لاندې ډولونو ویشل کیږي، لیکني (تحریري) او ګړني (شفاهي)، نثرونه چې لیکني (تحریري)، نثرونه په لاندې ډولونو ویشل شوي دي .

الف - لرغوني نثرونه:- لرغوني او پخواني نثرونه پر درې ډوله دي.

۱- متکلف نثرونه:- چې د باسواده پښتنو له خوا د عربي او پارسي ژبې د اغیزې لاندې لیکل شوي دي خو ورسره وسره د پښتو ځینې ځانګړې (خصوصیات) يې ساتلي لکه: د سلیمان ماکو د تذکرة الاولیاء (۶۱۲ هـ ق)

نثرچي تر دی د مخه بل پښتو نثر نه مونږ په واك کښې نشته دی . چي د نثر يوه نمونه يي په لاندې ډول ده :

« وايم حمد و سپاس د لوی خاوند او درود پر محمد مصطفیٰ (ص) چي دی بادار د کونينو او رحمت د ثقلينو لوی لوی رحمتونه لوی لوی رحمتونه دی وی دهغه استاذی په آل او يارانو، چي د واړه جهانه په دوی دی روښان.

مابعد : زه غريب خاوري سليمان زوی د بارك خان ماکوصابزی چه و ياله دارغستان او سيږم، او په دی مزکو پايږم په سن د ولس شپږ سوه هجری تللی وم او د پښتنخا (پښتونخوا) په راغوا و کليو گرځيدم او مراقد د اولياء او واصلينو می پلټل او په هر لوری می کاملان موندل او د دوی په خدمت کښی خاکپای وم ـ او هر کله په سلام ورته ولاړ ـ چه له دی سفره به کور کښی کښينا ستم او تماکی وچاودلی د پښو، بيا پاڅيدلم، او له خښتنه می مرستون شوم، چي احوال دهغو کاملانو کاږم او دوی چه هغه وينا وی پاته کړی دی او پښتانه به لولی او س » .

۲ ـ **مسجع نثر ونه** :ـ د لسمې هجری پيړی په شا و خوا کښې پښتو نثرونه د عربی او پارسی نثر بو د نثر ليکلني تر اغيزی لاندی او په پښتو کښې دود شوی دی چه غوره بيلگی يي د روښان پير خيرالبيان او د اخوند درويزه او اخوند قاسم نثرونه دی چه نژدی د وه پيړی يي د ود د رلود چي دخيرالبيان

څخه د پیر روښان د نثر نمونه په لاندې ډول ده:

«په نامه د خدای (ج) چې بخشاینده دی مهربان - معنی په نامه د خدای په خدای دی عیان. آغاز د دې کتاب: ځما دیر ستور صفت وکړنه، خوشې مې پیدا شي چې زما دیر ستور صفت والې اد میان. ګوره! ځما تسبیح وائې چې ځما په ځمکه کښې دي په اسمان. نشته هیڅ بیرون چه ځما تسبیح وایي، ته باور کړه په دا بیان. یسبح الله مَافِی السَّمٰوٰتِ وَمَافِی الاَرْضِ په قرآن کښې دی عیان. کل شيء قال تسبیح الرحمن، هادي ویلې دی، رحمت د خدای په ده دا کلام».

۳- روان نثرونه: د پښتو په لرغونو نثرونو کښې له مسجع نثر سره جوخت روان نثر هم دود شوي دي. دارزانی، علي محمد مخلص د تواریخ افاغنه د خوشحال خټک او د ده د زامنو او لمسی او د ده د کورنۍ د نورو غرو نثرونه یې په ګوته کولی شو.

ب- ننني نثرونه: د ننني نثرونو خوند او روانی د نوړو نثرونو په پرتله ډیر دی د دیار لمسی پیړۍ له پیل سره په پښتو کښې رواج او پیل شو د تنکي مولوي احمدي د مخکښانو څخه دی چه ګنج پښتو» نثر یې غوره بیلګه ده.

په ننینو نثرونو کښې بیلا بیل ادبی ډولونه رامنځ ته شوي دي لکه:

لنډه کیسه، ناول[1]*، رومان، ډرامه، کره کتنه، بیوګرافی «ژوندلیک»...
اونور. مګراروا بنادحبیبي دمضمون له مخې د پښتونثرونه داسي
ښودلی دی لکه: دیني، سیاسي، ثقافتي، تاریخي، فولکلوري، داستاني[2]*،
تعلیمي، تحقیقي، قانوني، هنري، اوادبي دي.
دلویدیځ ادب پیژندونکي په عنعنوي لحاظ نثرونه په څلورو ډولونو
ویشي لکه: تشریحي، توصیفي، استدلالي، داستاني نثرونه.

## II) نظم:

- دنظم تعریف:- نظم په لغت کښي دمرغلرو پیلوته وایي.
اوپه اصطلاح کې هرهغه کلام چي وزن اوقافیه ولري نظم بلل کیږي.

## دنظم ډولونه:

په پښتوکښي نظم په عمومي توګه پردوه ډوله دی.

الف- ملي نظمونه:- ملي نظمونه یواځي په پښتوژبه کښي دودا وویل
کیږي په نورو ژبوکښي شته دی او پرشپږ ډوله دی.

---

(1)* : داستان، سرګذشت، نوظهور، تعجب اور. (2)* داستان غریب وعجیب،
ماجراجویانه یاعاشقانه سرګذشتونه، زړه تړل په هغوعجیبوشیانو چي په تصوراتو،
خاطراتوپوری مربوط وي، دروغ یا اغراق چي دتوجه وړدي. دانګلیسي فرهنګ څخه.

۱- لنډۍ:- چې په ځینو ځایونو کښې یې ټپه، سراوتیکۍ هم ورته وایي، د پښتو یو ملي شعر دی چې د پښتو ژبې ادب یوه لویه برخه تشکیلوي. لنډۍ دوې مصراعې لري چې لومړۍ مصرع یې لنډه او نه (۹) سیلابه ده او دوهمه مصرع یې اوږده او دیارلس (۱۳) سیلابه ده. د لنډیو اصلي ویونکي معلوم نه دي خو اکثره پښتانه یې وایي که څه هم لنډۍ د موضوع له امله ډیرډولونه لري مګر اکثره یې عشقي (بزمي)، اورزمي (حماسي) دي یو څو نمونې یې په لاندې توګه ذکر کوو:

عشقي:

- سبا به بیا که بارانۍ دي | د دښت ګلان به دې لمنه بویوینه
په باغ کښې به ګرځه مینه | ګلان شرمیږي مخ په پاڼو پټوینه

اجتماعي:

تل په زحمت پسې راحت وي | چا چې زحمت لید لی وي راحت به وینه
په نسب څوک نه سړی کیږي | سړی هغه دی چې یې خوی د سړو وینه

حماسي:

راشه پر قبر مې اوربل کړه | که مې پر مړینې پر شا وویني ټپونه
توري به نکړو نو به څه کړو | چې موشیدي د پښتني رود لي دینه

۲- نیمکی:- دا هم د پښتو د ملي نظمونو څخه یو ډول شعر دی چې

د لنډ یو سره ویل کیږي او په پښتو کښي زښته ډیر رواج لري. نیمکی عموماً یو بیت یعني دوی مصرعې دي چي کله کله ډوا ره مصرعې سره یو شي او ځیني وخت یوه مصرع اوږده او بله لنډه وي او د قافیې شرط هم پکښي نشته. په دې ډول شعر کښي لومړی سر ویل کیږي او بیا د سریو جزو ر ولیږي و ر وسته د لنډۍ دوهمه مصرع ویل کیږي هر کله چي د لنډۍ دوهمه مصرع وویل شي نو کله کله د سر لومړی جز اول وویل شي او بیا ټول سر تکرار یږي او کله کله بي له دي چي نو موړی جز وویل شي سر تکراریږي ځیني وخت بیا ټول سر یو وار د لنډۍ تر لومړی او بیا تر دوهمي مصرع ور وسته تکراریږي. لاندې څو مثالونه د بیلګي په توګه راوړو:

- سر: پاس په باړه کښي او به ګډي وډي ځینه — راتاوشه لونګینه

لنډۍ: خدایه د علم باغ سمسور کړې — چي دارمان ځانګي می ونیسي ګلونه

د ویلو ترتیب: - خدایه د علم باغ سمسور کړې — راتاوشه لونګینه

چي دارمان ځانګي مي ونیسي ګلونه — راتاوشه لونګینه

پاس په باړه کښي او به ګډي وډي ځینه — راتاوشه لونګینه

* * *

- سر: لونګ کرمه — که لومي کډ کړ یاره تا به راولمه

لنډۍ: د جانان مخ د ګلو باغ دی — دیدن کوم امیل د ګلو جوړومه

دویلو ترتیب :- د جانان مخ د ګلو باغ دی - لونګ کرمه
دیدن کوم امیل د ګلو جوړومه - لونګ کرمه
که لومې ګډ کړیاره تابه راولمه

* * *

- سره هلک نزی چنار دی - نجلی د ګلوونه
لندی :- په باغ کښې مه وله کوتری - یوه به مړه کړی بیا به نه راځی سیلونه
دویلو ترتیب :- په باغ کښې مه وله کوتری - هلک نزی چنار دی - نجلی د ګلوونه
یوه به مړه کړی بیا به نه راځی سیلونه - هلک نزی چنار دی - نجلی د ګلوونه

* * *

۳ - چار بیتی :- د پښتو د ملی اشعارو په لړ کښې یو خوږ امشهور شعر دی چه کیسې، نکلونه داستانونه او نور اوږده اوږده مضامین پکښې اداکیږی چار بیته یو سرلری چه وهغه ته کسریا پیر و وایی. کسریا پیر و یو وار د چار بیتی په سر کښې ویل کیږی او وروسته بیا ترهر بند تکرار یږی چار بیتی په خپل منځ کښې د مصرعو د شمیر او اوږدوالی او لندوالی په لحاظ توپیر لری.
د چار بیتو د بند ونو د مصرعو شمیر د څلورو څخه نیولی تر شلو مصرعو پورې رسیږی همدغه سبب دی چه د مثنوی او قصیدی په شان اوږده اوږده مضامین پکښې اداکیږی په چار بیته کښې د موضوع تسلسل او ارتباط

يو مهم شرط دی او د ځينو نوروا شعارو په شان په يوه چاربيته کښې د ير موضوعات نه راوړل کيږي. د الاندې چاربيته چې خانمير ويلي ده د نمونې په توګه راوړو چې هر بند يې دولس مصرع لري:

په چپ کښې د ال بنی کښې خنجر نيسمه - دغليم مخه برابرنيسمه
يابه له صدقه خپل وطن شي زما - يابه په سرو وينو کفن شي زما

o o o

په دړو غوندې دغه لالې زما | په غوږ وواوره واره پاکې زما
که چيرې بريد مې يوځل راغي په تا | پوه شه اجل دی داچه راغي په تا
ماته وصيت د مور او پلار شوی | يوځل نه په څو څو وار شوی
د ننګ پر ځای ورکوی سر زامنو | مختورن مه شي په محشر زامنو
وصيت د پلار به ګاهې هېر نکړمه | څوځان دغه پلار په خير نکړمه

کله به هير د پلار سخن شي زما
يا به په سرو وينو کفن شي زما

په هر طرف د غرو زمريان لرمه | په لوړو غرو قوی بازان لرمه
غليمه تا به په دوی ښکار کړمه | داخوږ ژوند ون به په تا زار کړمه
پښتني دی وباسه چې بې آب به شي | د پښتنو په اور کباب به شي
پښتانه هسې ضعيف کام ندی | پښتون هرګز بې ننګ و نام ندی

ما د پښتون دتورې خرپ ليدلی          تاد پښتون په غليم ترپ ليدلی

واړه اولاد به دې د شمن شي نه مـا

يا به په سرووينوکفن شي نه مـا

۴ - رباعي :- د پښتو د ملي اشعارو څخه دي چي د پښتو عوام خلك وهغه غزلی ته چي موضوع يې پند او نصيحت وی رباعي وايي . نو د مخه ترچار بيتو، غزلو او نورو اشعارو په ورو ورو او يو مخصوص طرز سره يوه رباعي وايي او په دې توکه داوريدونکو توجه وخپل ځان ته راړوی او وروسته نو بيا په نورو شعرونو پيل کوی . د رباعي نمونه دا ده :

تـه چي ځانته هوښيار وائي هوښيار نه يې          ځکه پوه دي په ژوندون او روزګار نه يې

د قانون او شريعت خبرې تل کړې          يو ذره اګاه د شرعي په لار نه يې

په ژوندون کي د هر مرض دواشه          پس له مرګه به د هيچا په کار نه يې

که نيکي کړې که بدی کړې دادی وخت دې          بيارا تلو نکی په دې ځای کښي دوبار نه يې

تمام عمر عبث تيرشو رمضانه          تـه لا مور د دې دنيا په بازار نه يې

۵ - ټکی :- په پښتو اشعارو کښي يوه غوره او خوږه برخه ده چي ځيني خلك ئې لوبه هم بولي . ټکی د چار بيتو په څير يو سرلری چي په عمومي دول يو بيت وی او د دوارو مصرعو قافيه يې سره برابره وی . د غه رنکه د هر بند وروستنی مصرع د ټکي له سر سره په قافيه کښي يو شي وی سر د هر بند په

پای کبنی تکرار یږی . نمونه یې داده :

غمونه لری کړه له ما عاجز غمګینه — راتاو شه لونګینه
ودی ویشتم روغه دی نکړم — نوره یاری در سره نکړم
بل دی په سرو شوندو ننګی خانګی مینه — راتاو شه لونګینه

•

•

•

•

د محمد نور فقیره بخته — خنګه راپریوتی له تخته
بخت می کوږ شو آس ولاړ سره د زینه — راتاو شه لونګینه

۶ - ناری یا ژغونه : د پښتو ملی او مخصوص شعر دی چه په نورو ژبو کبنی یی په اغلب ګمان مثال نه لیدل کیږی . ناری یا ژغونه د پښتو په ملی افسانو او نکلونو کبنی راځی . او دا هغه افسانی او نکلونه دی چه په حقیقت کبنی د پښتو د ملی روحیاتو ، ننګ ، میړانی ، صداقت او بالاخره د پښتنو الی هنداره ګڼل کیږی .

ملی افسانی او نکلونه پښتانه په خوراخوند او ګرم جوش سره کوی او هر کله چه د ناره وار پکښی راشی ساز او سرود هم پکښی ږغول کیږی . ناری

دمصرعو دشمیر او دهغو داوږدوالی اولنډوالی په لحاظ په ځینو نکلونو کی یوشی او په ځینو نکلونو کښی توپیر لری .

د نمونې په توګه لومړی دجلات خان او شمایلي د نکل یو څو ناړۍ وګوری جلات خان او شمایله یوه ډیره سوزناکه قصه لری . شمایله دخنکار پاچا لور ده چی شرطونه لری څوک چی شرطونه ادا کړی شمایله د هغه ده اوکه شرطونه پر ځای نکړی نو سر یې پرې کیږی . دجلات خان ورونه او پخپله جلات خان غواړی چه دپاچا دلور شرطونه پر ځای کړی او دپاچا لور وګټی . پدی لاره کښی دجلات خان شپږ ورونه پر شمایله باندی سر بایلی مګر یواځې جلات خان چه دډوی کشر ورور دی دپاچا شرطونه پر ځای کوی او شمایله ګټی . کله چه د شمایلې پسی راهی کیږی نو دخپلی مور څخه داسی دعا غواړی

کده‌ږلیه دجلات خان په لاس مړلیه　　　　که‌ږایل کړی موری ستادځګر بیه

وروسته یو ملنګ پ‌مخه ورځی او دهغه څخه داسی دعا غواړی :

که‌ببر دی شافعین سر می بیر دی　　　　یوه‌مستنه دعا راکه‌چه په خوامی شمایلې‌سخت سفروی

## ب - مشترك نظمونه :

۱ - غزل :- دنظم له اقسامو څخه یو ډیر مشهور قسم دی چه په ټولو دیوانونو کښی زیاته برخه لری . دغزل لومړی بیت ته مطلع وایی . د مطلع دواړی مصرعی او دنورو بیتونو دوهمی مصرعی یوله بله سره په قافیه کښی

یوشي وي او په وزن کښې د غزلي ټولي مصرعې سره برابرې وي. دبیتونو شمیرېي له پنځو څخه نیولي بیا تر پنځلسو پورې رسیږي.

غزلي که څه هم په ډیرو موضوعاتو کښي ویل کیږي مګر اکثره عشقي وي، نمونه ئي دا ده:

| | |
|---|---|
| چه دوګوري وګړ ته وطن پریږدي | وطن څه دي چه روح والوزي تن پریږدي |
| که څښتن دي د تومنوستا په مینه | درویزه کاندي اختیار تومن پریږدي |
| بلبلان که دي له حسنه خبر دارشي | ستا دمخ په ننداره په چمن پریږدي |
| څه خو مخ وبتخانې وته جار باسه | چه د بتو پرستش برهمن پریږدي |
| ښه چه زړه مي مسافر شو ستا په لوري | عقیق لاشي قیمتي چه وطن پریږدي |

دجفا دمړوړ وند څه دي حسینه

که د جور خوي نه ماګلبدن پریږدي

۲- بولله یا قصید:- یو ډول شعر دي چه په عربي کښي قصیده ورته وائي. په قصیده کښي خوراوږده او ډول ډول مضامین ویل کیږي.

دبیتونو شمیر ئي له شپاړسو څخه نیولي تر دووسوو پورې رسیږي په قصیده کښي هم دغزلي په شان دلومړي بیت دواړه مصرعې او دنورو بیتونو دوهمې مصرعې قافیه بوله بله سره یوشي وي او په وزن کي یې ټولي مصرعې سره برابروي.

چه د غدلاندی بو لله عبد القادر خان ختټک ویلی ده :

شګفته په باغ او راغ شول د بهار ګل | هم په بام هم په کوځه هم په دیوار ګل
نه یواځې ګل د ګلو بوټی و نیو | بادام ګل، شفتالو ګل، ونیو انار ګل
هر اشیاد مځکې ګل پرورد کار کړه | جمادات ګل، نباتات ګل، کل اشجار ګل

⋮ | ⋮

چه نښان د چپل اشنا ورځنی مومی | ځکه یا د عبد القادر کړه په تکرار ګل

په بیاض کښی می د شعر دول دول
شګفته ئې تر ا بنه هزار هزار ګل

۳ - رباعي :- رباعی هغه دوه بیتونه دی چه د لومړی بیت دوی مصرعې د دوهم بیت له دوهمې مصرعې سره په قافیه کښې یو شی وی . نو ددی امله د پښتو د مخصوصی رباعی سره چه د ملی نظمونو په برخه کښی موولوستل توپیر لری . مثالونه یې دادی :

خزان چی راشی چمن تالا کا | د بڼ بلبلی په واویلا کا
نن که وصال دی سبا هجران دی | نیازمند به واړه شله جلا کا

* * *

طامع همیش وی په انتظار کی | آب ئې د مخ ځی په هر دربار کښې
ګنج چی د صبر پیر محمد بیا موند | توانګر بالله شی په دا دیار کښې

* * *

۴ـ قطعه: دوه یا تر دوه زیات بیتونه دی چه د لومړی بیت د دوو مصرعو قافیه سره یو شی نه وی مګر د بیتونو دوهمی مصرعی یو ډول قافیه لری لکه:

چه هاتیان ساتی پیدا کړه لویه خونه | چی هاتیان ور ننوځی هسی ور
کید ړ هرچیرته خپل وخت ساعت بدل کا | لوی ځنګل بویه زمری لره یاغر

* * *

اندیښنه که په غره کیږدی | غر به هم لکه ویښته کا
خوار سړی ملامت ندی | که په غم کښی ځان اوبه کا

۵ـ مثنوی: په مثنوی کښی ټول بیتونه یو ډول قافیه نلری خو د هر بیت د دواړو مصرعو قافیه باید سره یو شی وی او د بیتونو شمیر ئی هم یوه ټاکلی اندازه نلری بلکه د هغی موضوع په اوږدوالی او لنډوالی پوری اړه لری چه شاعر ئی په دی ډول شعر کښی اداکوی چه نمونه ئی د خادم د الاندی مثنوی ده.

## نوی نسل ته پیغام

ای د پاك وطن فرزنده | ای د قام خوږه دلبنده
ای د نوی ژوند پیغامه | ای ارزو د وطن قامه
د افغان د باغ سنبله | د پښتون د بڼ بلبله
سبا ته مسئول د کار ئی | که ته مور او که ته پلار ئی

هاى افسوس زيباوطنه ای د سر گلو گلشنه

ته جنت د دی جهان يې

خو افسوس دی چه نن وران يې

۶ - مستزاد:- هغه شعر دی چه يوه مصرع يې اوږده او بله لنډه وي لکه:

نه غوږ لرم چه واورم نه په خوله د خير ويل کړم

مدام منت پر بل کړم

چې قهر راشی عقل مې مغلوب شی نو بنکنځل کړم

مدام منت پر بل کړم

که هر څو کتا بونه رنګ په رنګ وځان ته ډير کړم

اوبنه ئې تر نظر تير کړم

را پيښه بد بختی ده چه يوه ذره عمل کړم

مدام منت پر بل کړم

مرض يم درد وغم يم نه دوايم نه درمل کړم

مدام منت پر بل کړم

۷ ـ **مربع**: یو ډول شعر دی چه بند ئې دوه دوه بیته وي، د سرپه دوو بیتونو کښې څلور سره مصرعې یو ډول قافیه لري وروسته بیا په هر دوو بیتونو کښې لومړی درې مصرعې یوله بله سره په قافیه کښې یو شی وي مګر څلورمه مصرع یې له لومړیو دوو بیتونو سره یو ډول قافیه لري او د شعر تر پایه دا مراعات په کښې کیږي. لکه: پیر محمد کاکړ د مربع یو څو بیتونه دادي.

| | |
|---|---|
| زړه مې نادان وو د مینې غل شو | فراق یې اور ورته اباندې بل شو |
| راحت مې واړه په غم بدل شو | اوښې سیلاب دي صورت مې شل شو |
| زیبا نګار چه زه را په یاد کړم | له درده دوغمه آه و فریاد کړم |
| قبول حیران یم د چا ار شاد کړم | بیل له ما خواره دلارې مل شو |
| عمر مې صرف شو په معصیت کې | شاکر یې نشوم په هیڅ نعمت کښې |
| او س صبح وشام یو په داحیرت کې | مقبول به خدای ته په کوم عمل شو |

۸ ـ **مخمس**: د مخمس هر بند له سر څخه تر پایه پورې پنځه پنځه مصرعې دي. لومړۍ پنځه مصرعې یو ډول قافیه لري په نورو بندونو کښې لومړۍ څلور مصرعې یو له بله په قافیه کښې سره یو شی وي مګر پنځمه مصرع یې له لومړیو پنځو مصرعو سره یو ډول قافیه لري او د شعر تر پایه پورې دغه مراعات پکښې کیږي. د حمید ماشوخیل د مخمس یو څو بندونه په لاندې ډول دي:

د هجران له لاسه ناست یم ویرژړلی
لکه بت په غتو سترګو دم ختلی

بیهوده په صورت روغ په زړه نتلی
بیلتانه په مرګی حال یم وسولی
ربه راولی آشنا په سفر تللی

یا له یاره سره ولاړه وی په رکاب کښنی
یا یې مړ وایې د هجران په اول تاب کښنی

یا وایې ډوب مدام داوښکو په سیلاب کښنی
حساب نشوم دیوی چاری په باب کښنی
هسی یاتی شوم بی آبه مخ ناولی

.
.
.

۹ - مسدس:- هر بند یې شپږ شپږ مصرعې لری. لومړی شپږ مصرعې یو ډول قافیه لری په نورو بندونو کښنی یې لومړی پنځه مصرعې یوله بله په قافیه کښنی سره یو شی دی مګر د شپږمی مصرعې قافیه د لومړیو شپږو مصرعو پر قافیه باندی بناکیږی لکه: د شمس الدین کاکړ د مسدس یو څو بندونه د مثال په ډول وګوری:

وخت د سحر دی مرغان چغیږی جرس اواز کاږه می لوزیږی
ستږګی می غور ځی بانور پیږی اثر د غم دی را معلومیږے
کوم بد خبر به راوه رسیږی
دیار د تللو خبر کیږے

داخه عشق نه دی واره ټګی ده داصدق نه دی منافقی ده
داصدق نه دی دغابازی ده دایاری نه ده دابیزاری ده
چه پر یار غم دی پرما ښادی ده
بی حیا زړه دی زما و شرمیږی

• •
• •
• •

مسبع ، مثمن او معشر هم دغه ډول اشعار دی خو صرف د مصرعو په شمیر کښی توپیر لری . څرنګه چه د دی اشعارو د نامه څخه هم ښکاره ده داشعارو بندونه په مسبع کښی اوه ، په مثمن کی اته او په معشر کښی لس مصرعی لری چه د سر په بند کښی د ټولو مصرعو قافیه یو له بله سره یو ډول وی او په نورو بندونو کښی نوری مصرعی یو ډول قافیه لری مګر یوازی د پای د مصرعی قافیه د سر د مصرعو پر قافیه باندی بنا کیږی .

۱۰- ترجیع بند :- د ویلو ترتیب ئې داسې دی چه لومړی څو بیتونه وویل شي وروسته بیا یو بیت چه د دواړو مصرعو قافیه یې یو له بله سره یوشی وي مګر د نوموړو بیتو سره ئې قافیه بیله وي ورولوینږی او دغه بیت پس له هر بند څخه تکراریږی .

په ترجیع بند کښې د هر بند د بیتونو شمیر غالباً د پنځو او لسو بیتو په منځ کښې وي مګر پنځه بیتیز ، اوه بیتیز او نه بیتیز ډیر رواج لري او کله یې د بیتونو شمیر تر لسو هم زیات وي . د ترجیع بند د ټولو بند ونو د بیتونو شمیر باید مساوي وي . د پیر محمد کاکړ د ترجیع بند نمونه داده :

ستا پر مخ پر تور و زلفو زه شیدا یم — صبح و شام په آه فغان په واویلا یم
په فراق کښې دی تل خوړم د څکروښې — صبر و توان مې بې له تا نشته مبتلا یم
نن فلک را باندی تیغ د جور و کینې — له سرو وینو د ک لړمون لکه حنا یم
رقیبان راسره جنګ و جدل کاندی — په دربار کښې د سپیو مدعا یم
غزاله غندې وحشی را څخه مشه — زه صیاد د دې د دیدن په تمنا یم
که شل کاله دی مانځ له ما یاره — بیګانه مې هنوز مه کړه آشنا یم

له اشنا مکړه ماني بې وفائی ده
چې سیځی مین بې اوږه جدائی ده

غمازان چې روغې چارې کړي ويجاړې — خوار عاشق به څنګه ستا په وصل ياړې
چه احوال د فراقت په شابه واوړم — هغه دم مې وچوي په خوله کښې ناړې
ولاله په دود له عمره ځګر خون يم — په ګوګل کښې مې تل وينې دي ولاړې
يا شبنم دي چه اوريږي په چمن کښې — يا بلبل دي د سحر په ګلو ژاړې
ګرد غبار دي د کوڅې يم و لې دريغه — خيال دي وصل دي لمن راټخه نغاړې
که هر څو تا مانې دي ننۍ ښلا شه — دل سوخته آشنا دي راغی عذر غواړې

له اشنا مکړه مانې بې وفائي ده

چه سيځي مين بې اوره جدائي ده

• •
• •
• •

١١ - ترکيب بند:- له ترجيع بند سره صرف دومره توپير لري چه په ترجيع بند کښې کوم بيت چه وروسته تر هر بند راځي تکراريږي مګر په ترکيب بند کښې وروسته تر هر بند يو بيل بيت چه بيله قافيه او بيله معنی لري راوړل کيږي په ترکيب بند کښې هم د ټولو بندونو د بيتو شمير بايد سره مساوي وي. د حميد د ترکيب بند يو څو بندونه دا دي:

په منزل به نۍ سبا ګوره څوک مله وی — نه پوهیږم چه به سادوی که به غله وی
په څه شان به شکسته زړه یې په زړه وی — له نغمی به نۍ د زړه نغمه په خوله وی
دم قدم به نۍ خولی د مخ په وله وی — رانجه کړی به نۍ چا خاوری د پله وی

سزاوار د هر ستم د هر پیغور یم
چه می یار په سفر تللی زه په کور یم

یاد یار سره تللی پر سفر وای — په هر ځای می غوږ ولی پری وزر وای
یا نۍ مرد بیلتانه د غمه زر وای — یا په دوار وسترګو تیپ رند په نظر وای
که دانه کیدای هر کره معتذر وای — خود به خود می ځان وهلی په خنجر وای

هسی یانۍ شوم تر یار پوری مخ تور
په جرګه د عاشقانو کښی کور ګوری

دا څه مینه محبت څه عاشقی ده — دا څه پت څه مروت څه صادقی ده
دم قدم د غابازی منافقی ده — په مذهب د عاشقانو فاسقی ده
سراسر نا قابلی نالایقی ده — په ذمه می د سنګار ګناه باقی ده

چه می یار په سفر تللی زه په کور یم
ګویا مخ په تبی تور او په خره سور یم

چه می یار په هندوبار زه په خپل کور یم — نه د غمه پسی مرنه کړاو کور یم
نه بی هو بنه نه پښی ایلی نه سر توریم — خواره خورم او به چښم په خندا خوریم
دیار یار د خپلو خپل د ورونو ورور یم — لکه ومه هغه شان په خپل انځور یم

د حمید دا زندګی شرمندګی ده
که نۍ مرکه عزرائیل ته بندګی ده

# دنثر ډولونه

لیکنی نثرونه
(تحریری)

کړنی نثرونه
(شفاهی)

لرغونی نثرونه

متکلف نثرونه

مسجع نثرونه

روان نثرونه

ننني نثرونه

لنډه کیسه

ناول

رومان

ډرامه

کره کتنه

بیوګرافی


داستاد عبدالحی «حبیبی» دویش لەمخی
دینی
ثقافتی
فولکلوری
تعلیمی
قانونی
ادبی
سیاسی
تاریخی
داستانی
تحقیقی
هنری




د نظم دوولونه
ملي نظمونه
مشترك نظمونه
لنډی - نیمکی - چاربیته - رباعی - بګتی - ناری یا غبروونه
غزل
بولله (قصیده)
رباعی
قطعه
مثنوی
مستزاد
مربع
مخمس
مسدس
مسبع
مثمن
معشر
ترجیع بند
ترکیب بند

تر دی ځایه مود شعرونو په دولونو بحث وکړ او د امو هم لازمه وګڼله
چې د شاعرانو په سوانحو هم تر یو حده وغږیږو . چې د شاعرانو سوانح
هم د نثر د جملې څخه ګڼل کیږی نو مونږ هم په همدی ارتباط د هغو
شاعرانو او ادیبانو سوانح چه د نصاب په هغو کتابو نو کښی چې د
لومړی بو ټولګی څخه تر نهم ټولګی پوری یې کوم اثر راغلی وی تشریح کوو .

## III، د شاعرانو سوانح :

۱- بیټ نیکه :- دغه سړی په پښتو کښی ډیر شهرت لری او د ا
سړی خوړا لوی پښتون او مشهور نیکه ګڼل کیږی . د بیټ نیکه نوم په
تاریخونو کښی بیټنی او بټن هم راغلی دی د بیټ نیکه نوراحوال پوره معلوم
ندی خو پټې خزانی له لیکلو څخه ښکاری چه اسمٰعیل د بیټ نیکه زوی په
(۴۱۱ هـ) کښی مړشوی دی نو چه د اسمٰعیل د ژوند وخت (۴۰۰ هـ) حدود
وی نبایې پلار یې هم د (۳۵۰ هـ) په شاوخوا کښی ژوندی وی . او ژوندی یې
د (کسي) په غره (سلیمان غره) کښی تیر شوی دی .

د کلام نمونه یې دا ده :

| | |
|---|---|
| لویه خدایه لویه خدایه | ستا په مینه په هر ځایه |
| غرو لاړه دی درناوی کښنی | تول شوی په زاری کښنی |

دلته دی دغرو لمنی                زمونږ کیږدی دی پکښی پلنی

داوکړی دیر کړی خدایه

لویه خدایه لویه خدایه

۲ ـ خوشحال خان بابا :- خوشحال خان بابا دشهباز خان

ځوی د یحیٰ خان لمسی او د ملک اکوړی کړوسی دی او په (۱۰۲۲ هـ ق)

کښی زیږ یدلی دی چی پید ایښت ئې په اکوړی کښی شوی دی او په

قوم ختک وه . او د ۷۸ کالو په عمر د دوهمی خور په (۲۸) په (۱۱۰۰ هـ ق) کښی

وفات شوی دی لو د (هوډی) د غره ترڅنګ خاوروته وسپارل شواوده

غزل ، قصیدی او رباعیات ویلی دی . خوشحال ختک د پښتوژبی ستر

شاعر او لیکوال وه په فارسی ژبه ئې هم شعرونه ویلی دی او هلته (روهی)

تخلص کوی . د مهمو اثارو نومونه یی دادی ؛ د اشعارو دیوان ، فضل نامه

طب نامه ، باز نامه ، دستار نامه ، سواتنامه ، فراق نامه ، فرخنامه ، هدایه

عنایه . د کلام نمونه یی داده ؛

ادب چی نه وی په سپین په تور کښی                عزت به نه وی په هغه کور کښی

دولت به دروی له هغه خلقه                چه سره تل وی په شر او شور کښی

۳ ـ عبد الرحمٰن بابا :- د پښتوژبی یو نومیالی او صوفی شاعر وه .

د پلار نوم یی عبد الستار او په (۱۰۴۲ هـ ق) کال کښی د پیښور په بهادر

کلی کښنی زیږیدلی دی. په قوم مومند. دغه نامتو شاعر او ادیب په (۱۱۱۸ هـ ق) کال کښنی وفات شوی دی مقبره یې د پیښور د هزار خانی په هدیره کښنی ده. او دغه نوموړی یو صوفیانه شاعر دی او یو دیوان لری. چی د کلام نمونه یې دا ده:

| | |
|---|---|
| څوک چی ژړاکاندی قسم په کردگار | که درم لرم په کوره کښنی یا دینار |
| نه درم او دینار نلرم په کور کښنی | ولی نور عالم می بولی دنیادار |
| داپه دا چی نه لځایه چیرته خوځم | نه د هیڅ یوه مخلوق یم منت بار |

۴ - میرزا خان انصاری: میرزا خان انصاری د نور الدین زوی او د بایزید روښان لمسی دی. په تبر «اورمړ» او په غالب گمان سره د «۹۸۸ هـ ق» کال په شاوخوا کښنی پیدا شوی دی اگرچه د زیږیدو نیټه یې پوره معلومه نده بایزید روښان اصلاً د وزیرستان د کانیگرام دی. میرزا خان په (۱۰۴۰ هـ ق) کال کښنی د دکن په یوه جگړه کښنی شهید شوی دی.

د میرزا خان انصاری د دیوان دوه قلمی نسخی د پښتو ټولنی په کتابخانه کښنی، دوه قلمی نسخی د اطلاعاتو او کلتور د وزارت د خطی نسخو په کتابخانه کښنی یوه نیمگړی نسخه د حبیب الله رفیع په کتابخانه کښنی او یوه نسخه د ښاغلی بینوا په کتابخانه کښنی همدارنگه د پیښور موزیم (اکادمی)، د محمد نواز خټک د بالاماڼی او د بریټش موزیم په کتابخانو

کبنی هم د میرزا خان د دیوان قلمی نسخې شته .

د کلام نمونې یې په لاندې ډول ده :

| | |
|---|---|
| نن به وکړم څو صفته | د مولا له ارادته |
| هریو فعل چه یې وینې | خالي نه دی له حکمته |
| پر احمد (ص) نزول قرآن شو | چه سل څوارلس یې سورته |
| چه شپږ زره په شمار دی | شپږ سوه شپږ شپیته آیته |
| دیرش یې سپاري دي | څوارلس یې سجدې د تلاوته |
| دری لکه دیرش زره دولس حرفه | بیا یې څوارلس روایته |
| په پښتو یې زه وایم | د هر حرف یا زده لغته |
| رهبري یې د توحید که | په ځولونه عبارته |
| کل صفت یې بیان شوې | د توحید د معرفته |
| لکه علم د توحید دی | نور دي واړه اشارته |

د میرزا کلام شیرین شو

د روښان له برکته

۵ ـ حمید مومند :- حمید په قوم مومند او د پېښور په ماشوخېلو (ماشوګګره) په کلي کښې زیږیدلی دی خو د زیږید و نېټه یې معلومه نده مګر مړینه یې پروفیسر (بو مهارت) په (۱۱۴۵ هـ) کال کښې ښللې ده .

حمید بابا د پښتو ژبې ډیر نازک خیاله او باریک بین شاعر تیر شوی دی چه تر ده وروسته شاعرانو ورته «موشګاف» لقب ورکړی دی.

د حمید بابا اثار په لاندې ډول دي:

د حمید بابا د اشعارو دیوان چه په درومرجان مشهور دی، نیرنګ عشق، د شاه او ګدا قیصه، شرعة الاسلام، د حمید ورك پاڼې.

د کلام نمونه يې داده:

| | |
|---|---|
| چه د او سپنې خنځیر شلوی په ګوتو | هغه دیو په اومه تار د احسان نښلي |

۲- میرمن نیکبخته:- د پښتو د شاعرانو میرمنو څخه ده د دې کورنۍ د پیښور په اشنغر کښې او سیده او پلار نیکه يې روحانی خلك وه او د ممو زیو مرشدان وه د دې پلار شیخ الله داد ممو زی د خپل عصر عالم او ممتاز سړی وه نیکبخته هم عارفه او زاهده میرمن وه دینی علوم يې لوستلی او عمر ئې په ریاضت او عبادت تیر اوه.

په (۹۵۱هـ) کال يې له شیخ قدم سره چه د خواجه محمد زاهد خلیلی متی زوی وه واده وکړ.

بی بی نیکبختی په (۹۶۹هـ) کال کښې یو کتاب لیکلی دی چه نوم يې (ارشاد الفقراء) دی چه د اشعارو نمونه يې په لاندې ډول ده:

| | |
|---|---|
| په زړه ښاد شی ای مؤمنه | په ظاهر په باطن سپینه |

ظاهر زهد په اخلاص کړه — په زړه تینګ شه له یقینه
شکر صبر په هر حال کړه — خود نمائی مه شه خود بینه

۷ - زرغونه انا :- زرغونه انا د اعلیحضرت احمد شا بابا مور وه. او لکه احمد شاه بابا چه د بابا لقب وړی دی همدغه رنګه دی پښتنی میرمنی ته د « انا » لقب ورکړ شوی دی. زرغونی انا تل د چپل ننګیالی زوی سره په ښو ښو افکارو کښی مرسته کوله او لکه څنګه چه یې په خپلو پاکو شیدو کښی چپل زوی ته د پښتونو لی غذا ورکوله همدا شان ئې په خوله هم د افغانیت درس ورکاوه. زرغونه انا د الکوزو ټبر ته منسوبه وه که څه هم د دی انا د مړینی تاریخ پوره ښکاره نه دی خو داسی ښکاری چه تر (۱۱۴۷ هـ) د قندهار د ښار د جوړیدو تر تاریخ وروسته او د احمد شاه بابا په ژوند وفات شوې ده. مزار ئې د ارغنداو د رود په غاړه د (کوهک) په کلی کښی دی.

۸ - احمد شاه بابا :- احمد شاه بابا چه اصلی نوم یې احمد خان دی د زمان خان زوی د دولت خان لمسی د سرمست خان کړوسی د خواجه خضر کودی او د سدو پردی دی.

په (۱۱۳۵ هـ ق) په هرات کښی زیږیدلی دی. پلار او ترونه یې په هرات کښی واکمنان و، په (۱۱۶۰ هـ ق) کال کښی د نادر افشار تر مرګ

وروسته احمدشاه بابا دهرات نه کندهار ته راغی او د شیرسرخ په کلی کښې د پښتنو له خوا په پاچاهی وټاکل شو.

احمدشاه بابا د خپلې پادشاهۍ په موده کښې پښتانه سره یو کړل او دافغانستان طبیعي حدود یې فتح کړل.

په بخارا، خراسان او هند کښې یې هم فتوحات وکړل.

احمدشاه بابا د ملي ترینولو وروسته، دهغه ځای گورگاني پادشاه پرخپل حال پرینبود. احمدشاه بابا د (۱۱۸۶هـ ق) د رجب دمیاشتې په شلمه تر (۲۶) کلونو پادشاهۍ نه وروسته په کندهار کښې وفات او هلته خښ دی. ځینې مؤرخین د ده ژوند (۵۰) کاله بولي.

احمدشاه بابا یو عالم او ادیب او ادب پالونکی پاچا او دپښتو ژبې ښه شاعر وه. دپښتو شعرونو یو دیوان تری پاتې دی چه دری زرو بیتونه رسیږی.

د دری ژبې د اشعارو یو دیوان یې هم درلود او په عربی ژبه هم ډیر خوندور اشعار تری پاتې دی. د تصوف په باره کښې یې په دری ژبه یو کتاب لیکلی دی چه «علم گنج» نومیږی. د احمدشاه بابا دیوان د لومړی ځل دپاره په (۱۳۱۹هـ ش) کال د پوهاند عبدالحی حبیبی په مقدمه او زیار دپښتو ټولنې له خوا چاپ شوی دی.

بل ځل (دیوان احمد شاه ابدالی) د پښتو پښتو اکاډیمی له خوا په (۱۹۶۳م) کال د قاضی هدایت په مقدمه او زیار چاپ شوی دی .

د دیوان قلمی نسخی یی د افغانستان د جمهوری ارګ، د اطلاعاتو او کلتور د وزارت د خطی نسخو په کتابخانو او همدارنګه په پېښور، شوروی، ازبکستان، تاشکند او لندن کښی شته .

د کلام نمونه یی په لاندی ډول ده :

سره په وینو د سرو ګاو په څیز زانګی
هزار زړونه ستادی لفو په هر خم کښی
داهلال دی چه لیده شی په شفق کښی
که په لاس د ګل اندامی سپین وښی دی

۹- پیر محمد کاکړ :- پیر محمد په ختنه کاکړ د احمد شاه بابا د زمانې شاعر او هغه د زوی شهزاده سلیمان استاد وه . د نوموړی ژوند تر (۱۱۹۶ هـ ق) کال پوری یقینی دی. ځکه چی په همدغه کال یی خپل دیوان سرته رسولی دی .

داسی معلومیږی چه پیر محمد تر (۱۲۰۳ هـ ق) دمخه وفات شوی دی . ځکه چه په همدی کال کی یی شاګرد ابراهیم خان کاکړ دیوان نقل کړی دی او په خپله خاتمه کی یی پیر محمد داسی یاد کړی دی چه له هغی څخه دا

راووځي چه په دې وخت کښې پیر محمد مړ وه.

پیر محمد په کندهار کې او د شاه دولي پرغاړه د حضرت جي صاحب زیارت ته نږدې خښ دی. د پیر محمد اصلي ځای بزوب وُچه د کاکړانو د هستو ګنې سیمه ده.

د پیر محمد کاکړ د اثارو نوmونه دادي: پښتو دیوان، معرفة الافغاني او د پښتو تاریخ د کلام نمونه یې په لاندې ډول ده:

سیم و زر په ملک کښې نلرم ناداریم
په دولت د زړه بې حده دیناداریم

وظیفه د حق له دره راسېږي
نه د سپي غوندي طامع د بل دیاریم

:

ترهما بلند نظریم که باور کړې
کرګس نه یم چه جیفه ته هواداریم

نه مګس یم چه په غوړه کاسه نښلم
نه دعوت وته د چاپه انتظاریم

د اغیار په صورت اوریم چه لګیږم
لکه ګل تروتازه په لاس دیاریم

هیڅ بندګي د بل صاحب اختیار نشي
خاص بنده زه (پیر محمد) د کردګاریم

۱۰ـ میرمن نازو :- د سلطان ملخي توخي لور وه چه تولد یې په (۱۰۶۱ هـ) کښې په تازي نومي ځای کښې چه د قلات او کندهار ترمنځ

پروت دی. شوی دی. نازو په کوچنی والی له پښتنو میرمنو او سپین ږیرو علماو څخه لوست وکړ. او میره مخی ارتینه وه چه نارینه یې میرانی او شجاعت او سخاوت ته حیران وه. نازو په حباله د شالم خان هوتک وه چه د کرم خان زوی و، او د هوتکو د شالم خیلو وه نامتو خلور زامن درلود چه مشر یې حاجی میر خان او نور عبد العزیز خان، یحیی خان او عبد القادر خان وه.

نازو انا عابده صالحه ښځه وه او خپلو زامنو ته یې تول عمر په او داسه شیدی ورکولی علاوه پر سخاوت، شجاعت او عبادت هسی ارتینه وه چه د خدای تعالی څخه په مناجات ئې دیر اشعار ویل او یو دیوان یې درلود چې (۲۰۰۰) بیتونه پکښی وه. د کلام نمونه ئې دا ده.

سحر که وه د نرگس لیمه لانده      څاڅکی څاڅکی یې له سترگو څڅیده
ماویل څه دی ښکلی گله ولی ژاړی      ده ویل ژوندمی دی یو خوله خندیده

۱۱- عبد القادر خان ختک:- عبد القادر خان د خوشحال خان ختک زوی دی د (پتی خزانی) په روایت د (۱۰۶۱ هـ ق) د جمادی الثانی په (۲۳) زیږیدلی دی. مگر وروستینو څیړنو ثابته کړی ده چه د (۱۰۶۳ هـ ق) د ذی الحجی په (۲۳)، د (۱۶۵۲ م) د سمبر کښی زیږدلی دی او عبد القادر خان د ده د زیږیدو د تاریخ ماده ده چه د ابجد په حساب (۱۰۶۳) ترې راوځی تعلیم او تربیت ئې د خپل پلار په لاس شوی دی په داسی حال کښی چه

خوشحال خان پـخپله د توری او قلم خاوندوه او دامیراث یې کورنی ته پاتـه
وه مګر عبد القادر خان پرته د خو موقعونه چې د پلار سره د مرستی په توګه په
ځینو جګړو کښې شامل شوی وه نور وملکی او سیاسی معاملو یا د وخت
د حکومت سره د ملازمت موافقت یا مخالفت په لړ کښې یې ډیر ځنډ نه دی
کړی .

د هغه تمایل د تصوف او روحانیت خوا ته زیات وه او د خپل وخت یو
بزرګ عارف حضرت شیخ سعدی لاهوری ته راجـع شوی وه .

او د ده د وفات نیټه ( ۱۱۴۳ هـ ق ) کال په شا و خوا کښې تخمین شوی
ده او د غه لاندی اثار یې مونږ ته پاتې دی .

د اشعارو دیوان ( د عبد القادر دیوان ) ، یوسف زلیخا ، ګلدسته ،
نصیحت نامه ، قصیده د بردې ، څلویښت حدیثه ، ادم خان او درخانی
، سر بیره پر د غو کتابونو عبد القادر خان نور پښتو اثار هم لیکلی دی چه له
بده مرغه اوس ورک دی .

د کلام نمونه یې په لاندی ډول ده :

| | |
|---|---|
| ژبه عادت کړه په ښو خبرو | خبری ښی دی ښی تر شکرو |
| د خوند مثال یې شکری و ایم | قدر یې ډیر دی تر مرغلرو |

۱۲- ګل پاچا (الفت):- ګل پاچا الفت د میر سید پاچا زوی او د سید فقیر پاچا لمسی په ختمه سید پښتون او په (۱۲۸۷ هـ ش) کال کښی د ننګرهار د لغمان د عزیزخان په کلی کښی زیږید لی. علمی تحصیلات یې په غیر رسمی مدرسو کښی کړی او د خپل وخت متداوله علوم لکه: صرف، نحو، منطق، تفسیر، حدیث، معانی او بیان ئې د ننګرهار او کابل له مشهورو استادانو څخه لوستلی دی.

الفت صاحب د پښتو ژبې په ننني لیکوالو او ادیبانو کښی ډیر لوړ مقام درلود او د استاذی منزلت ته رسید لی وه او په نثر او نظم کښی استاذ انه قلم درلود او په دری کښی هم ښه نثر لیکلی او د نظم استعداد هم ورسره وه. په عربی کښی ئې هم کله کله مقالی لیکلی دی د ده شعر ډیر سلیس او روان خوږ او په عین حال کښی له ابتکاره ډک دی ډیر نازک او نوی خیالات ئې په زړه وساده الفاظو کښی ځایول او ډیر وزړه او له نظره لوید لو مضامینو ته ئې نوی خوند او رنګ ورکاوه. لیکلی اثار یې په لاندی ډول دی:

د پسرلی نغمه، بله ډیوه، لغوی څیړنه، پښتو سند دی، عالی افکار، څه لیکل او لیک پوهه، ادبی بحثونه، پښتو کلی، د ازادی پیغام، غوره اشعار لوړ خیالونه او ژوړ فکرونه، منطق، غوره نثرونه. او یو تعداد اثار نور چه

لاچاپ شوی نه دی. دکلام نمونه یې داده:

اوربل ئې ماپه خوب کښې پریشان لیدلی دی
ستا بخت خو مې رقیبه دغه شان لیدلی دی

دګلوهار په غاړه محبوبا شوه ړا حضوره
بلبله داوطن مې ګلستان لیدلی دی

کاږغان به په کښې نه وی بلبلان به پکښې وې
باغونه به سمسور وی ما باغبان لیدلی دی

داتوره شپه به خدای کاندی پرمونږ باندې سبا
سپین مخې مې چه سباغوندی روښان لیدلی دی

تعبیرېي کړی ما په ظالمانو به چپه شی
چپه کاکل مې خوب کښې دجانان لیدلی دی

مهاربه دی په پوزه شی دسروزرو خاوند
په سروشوندو دپاسه مې پیزوان لیدلی دی

۱۳- صدیق الله «ړښتین»: ـ ښاغلی صدیق الله ړښتین د مرحوم مولوی تاج محمد ږوی په خټه مومند د پښتو ژبې پوخ لیکوال، نامتو شاعر او پیاوړی پوهاند په (۱۲۹۸ هـ ش) کال د ننګرهار د مومندو د سیمې په غازی اباد کښې زیږیدلی دی.

د ده د ژوند زیاته برخه د پښتو ژبې په ادبي څیړنو او علمي پلټنو کښې تیره شوی او د پښتو او پښتونو الې ښتین مین او صادق خدمتګار دی په تیره بیا د پښتو ژبې په ګرامر کښې ښه لوی لاس لری او د استادی مرتبې ته رسید لی دی ده قرآن عظیم الشان د خپل پلار څخه لوستلی دی او د خپل پلار ترمړګ وروسته یې تعلیم د خپل کاکا له مخصوصو استادانو څخه کړی دی .

د ده مور هم د ده په تعلیم کښې ډیر کوښښونه کړی دی . دی په کال (۱۳۱۱ هـ ش) کښې د ننګرهار د هډې په نجم المدارس کښې داخل شو او په دغه وخت کښې یې په شعر ویلو هم لاس پورې کړ د ده لومړی شعر په (۱۳۱۶ هـ) د جشن په اصلاح (اخبار) کښې نشر شو چه ځینې عربي مقالې یې هم لیکلې دی . په (۱۳۱۸ هـ) کښې چه د دارالعلوم څخه فارغ شو نو پښتو ټولنې ته په همدې کال راغی او په (۱۳۳۰ هـ) کښې د پښتو ټولنې رئیس شو او په (۱۳۵۵ هـ) کښې د معارف مشاور وه او په همدغه وخت کښې د ادبیاتو د فاکولتې استاذ هم شو . محترم استاذ ټول (۳۴) آثار لیکلي چه د هغې جملې څخه یې اکثره چاپ شوی او څه لا چاپ شوی ندی چه د نمونې په ډول یې دیو څو نومونه اخلو :

پښتانه شعرا دوهم ټوک ، د پښتو ادب تاریخ ، د عبدالحمید مومند

دیوان، دخوشحال ختک بازنامه، دپښتو اشعارو قسمونه چه تقریباً اته سوه مقالی یی هم لیکلی دی. دکلام نمونه یی په لاندی دول ده؛

یو سهار شو مه روان د باغ په لوری
په اسمان کښی ښکاریده لا ښکلی ستوری
پلوشی لا د نمر نه وی خوری شوی
د فلک لمنی نه دی لا سری شوی
باغ ته لاړم یو عجب ښکلی گلشن وه
د ښایسته ښایسته بلبلو نشیمن وه
قسم قسم سرو دونه د مرغانو
په دی باغ کښی چغهار وه د طوطیانو
نسیم هسی په مزه وه الوتلی
له فرحته واره باغ وه غوړیدلی
د قدرت تابلو رنگینه ښایسته وه
د هر بوټی غیږ کښی ایښی گلدسته وه

. .
. .
. .
. .
. .

۱۴- کاظم خان شیدا :- کاظم خان شیدا د افضل خان زوی د اشرف خان هجری لمسی او د خوشحال خان ختک کړوسی دی. د (۱۱۴۰ھ) په شاوخوا کښي د پاکستان د ختکو د علاقي د اکوړې په سرای افضل اباد کښي زیږیدلی دی شیدا د پښتو ژبي ډیر نازکخیال او په عین حال کښي ډېر د مند شاعر دی او د ده خوندور اشعار د پښتو ژبي ګاڼه (ګینه) او زیور باله شي او د پښتو ژبي د دیوان خاوند دی.

کاظم خان شیدا د خپل وخت په دیني، تصوفي او ادبي علومو کښي وارد ؤ او سربیره پر پښتو په فارسي ادب کښي د پراخي مطالعي خاوند ؤ او فارسي شعر يې هم ویلي دی او په (۱۱۸۱ھق) کښي يې خپل دیوان مرتب کړی دی او په (۱۱۹۴ھق) کال کښي مړ شوی دی. د کلام نمونه يې دا ده :

چي ممسکان کا سیم و زر جمع
په صرف يې ژاړي مانند شمع
که يې په سیم وی کیسه لبریزه
له غیره کاندی د زر و طمع

په لږ قانع شه خاطر کړه جمع
لږي له زړه کاله ډیر وطمع

چې قناعت یې په سیم ونه کړ
سر بریده شوه په زر وشمع

فروتني کړي سر بلندانو
بهره یونه وړه خود پسندانو

تل خمیده وي بارور ي څانګي
تواضع خوي کړه بهرمندانو

لوېي که موږ نهار لوئی مکړه
چه مکافات شته جز نیکوئی مکړه

۱۵ - ملا مشک عالم ملا دین محمد چه په مشک عالم مشهور دی په قوم اندړ وه ملا مشک عالم ښه عالم او فاضل وه ډیر شاګردانې دړلوده . ډیرو ولړو دړس ځیني وایه او دده څخه یې علمي استفادې کولي ملا مشک عالم د غازیانو د رئیسانو څخه دوطن د حقوقو په مدافعه کښي د غازي محمد جان خان او نورو ننګ ور وپښتنو سره ملګری او شریک وه . د وطن لپاره یې علمي او حربي خدمتونه کړي دي چه نوم یې تراوسه پوري ښوندي دي .

۱۶ - علامه سید جمال الدین افغاني : دختیځ ستراسلام پوه

علامه سید جمال الدین افغاني دکنړ دولایت دساداتو په یو علمي او دینداه کورني کښې زیږیدلی وو. د پلار نوم ئې سید صفدر د سید علي زوی دی. په نهم پلار کښې د نسب لړی سید علي ترمذي او په اتلسم پلار کښې سید جلال ته چې په گنج العلم يي شهرت درلود رسیږی. دنومیالي سید د نسب لړی په (۳۰) پوشت کښې سید شهداء حضرت امام حسین (رض) ته رسیږی. نوموړی دکنړد ولایت داسعد اباد په سیمه کښې د (۱۲۵۴ ه) کال په شعبان کښې چه د (۱۸۳۸ م) کال له اکتوبر سره سمون خوری زیږیدلی وو.

لومړني زده کړه ئې دخپل پلار رخڅه کړې وه سید جمال الدین ډیرذکي او ذهین وه تر (۱۸) کلنۍ پورې ئې ادب ، نحو، بلاغت، تاریخ ، فقه، تفسیر حدیث ، تصوف، منطق، کلام ، الهیات ، فلسفه، ریاضي، طبیعیات او طب ولوستل چه دهم هغه وخت مروجه علوم وه او نومیالي سید په لږ عمر کښې پرې بشپړ تسلط پیدا کړی وه. په دري، عربي، او پښتو ژبو ئې خبرې اولیک کولای شو سربیره پردې انګریزي، فرانسوي، روسي ژبې ئې زده کړې ترکي ته دورتګ نه وروسته په ترکي، انګریزي او فرانسوي ژبې مضامین لیکل سید جمال الدین افغاني غوښتل چه په

تو له اسلامي نړۍ کښې وګرځي او د هغوی له حالاتو خان خبر کړي نو لوی هندوستان ته ولاړ پس له یوه کال نه ئې په (۱۸۵۷م) کال کښې حج ته ولاړ، وروسته بیا شام، فلسطین، عراق، ایران، ترکۍ او بخارا ته تللی دی په دغه سفر کښې ئې د مسلمانانو له حالاتو او مسایلو نه په ښه توګه ځان خبر کړ او په ذهن کښې ئې د اسلامي امت د بیدارۍ او یووالی ستر فکر پیدا شو.

وروسته له دغه اوږده پنځه کلن سفر نه بیرته هرات، کندهار او د هغه ځایه جلال اباد ته راغی او د امیر دوست محمد خان په دربار کښې د مشاور په حیث ومنل شو او د شهزاده محمد اعظم خان د ښوونې او روزنې چارې هم وروسپارل شوې سید جمال الدین افغانی (رح) له (۱۸۶۱) م نه تر (۱۸٦٨م) د افغانستان د درېو امیرانو، امیر دوست محمد خان، امیر شیر علی او محمد اعظم خان خاص مشاور او لوی وزیر وه. د محمد اعظم خان له وروستی ماتې وروسته له شیر علي خان نه د حج د تللو اجازه وغوښتله او د کندهار په لاره هند ته رهي شو. د خپل قلمي جهاد د موثریت لپاره علامه د استعماري قوتونو پر ضد د العروة الوثقی نومې جریدې په خپرولو پیل وکړ چه موسس او سیاسي مدیر ئي سید جمال الدین افغانی وه لوی محرر ئې د مصر نامتو مفتي او لیکوال

شیخ محمد عبده وه لومړی ګنه ئې د (۱۸۸۴م) کال د مارچ په (۱۳) نیټه خپره شوه. د انګریزانو په واسطه په (۱۸۸۴م) کال د اکتوبر په میاشت کښې د (۱۸) ګڼې له خپریدونه وروسته بنده شوه.

د علامه د ژوند وروستي ورځې په ترکیه کښې تیرې شوې نوموړی د ترکی په نشان تاش نومي ځای کښې د سختې ناروغۍ له کبله د (۱۸۹۷م) کال د مارچ په (۹) نیټه په استنبول کښې د (۶۰) کالو په عمر وفات شو. د مرحوم علامه افغانی مړی (۴۰) کاله وروسته د افغانستان حکومت د ترکی په اجازه کابل ته راوړ او د کابل پوهنتون په ساحه کښې خاورو ته وسپارل شو.

۱۷ـ حضرت حسن بصری:ـ د حضرت عمر (رض) د دوری دوه کاله لا پاتې وه چه حضرت حسن بصری (رح) په مدینه منوره کښې وزیږیده. حسن بصری (رح) د ابی الحسن ابو سعید زوی دی چه د زید بن ثابت مولی وه او د یسار لمسی دی او د بن سبې د قبیلې څخه دی.

پس د حضرت عمر (رض) د قتل نه بصری ته راغی او هلته ئې خلکو ته تعلیم ورکاوه او د تابعینو څخه دی.

۱۸ـ بهائی جان:ـ بهاءالدین مشهور په بهائی جان د محمد یار انتش نفس زوی د (۱۳۱۳هـ ق) کال د لوی اختر میاشتی

په (۱۱) د کنډهار د کلات په غونډان نومي ځای کښي زیږېدلی دی او د (۱۳۵۱ هش) د لندي په اوله مړاو په غزني کښي د سلطان محمود غزنوي د مزار په ختیځه خواد شاه عبد الرازق د مزار (د غزني موزیم) سره نژدې خاوروته وسپارلی شو.

د صرف، نحو، منطق، تفسیراو نورو علوموتحصیل ئې کړی دی د تحصیل نه وروسته د نقشبند د سلسلي په طریقه کښي شامل شو او د پیري په مسند کښیناست په (۱۳۲۱ هش) کښي یې په غزني کښي یوه مدرسه او د لوګر په ځرخ کښي یې د مولانا یعقوب څرخي په مزار یوه خانقاه جوړه کړه. بهائي جان صاحبزاده په پښتو او دري کښي شعرونه ویل. د شعر به فنونو پوهیده او په موسیقي کښي ئې هم لاس درلوده خطئې ښکلی وه د بهائي جان کلیات د چاپ وخت (۱۳۶۳ هق) کښي دولسو تالیفاتو خاوندو.

بهائي جان په اولسي اهنګونو عشقي او تصوفي شعرونه ویلي دی چه یوه نمونه ئې داده:

تنه چه نازاو کرشمي عیانوي ـــ زړه مي ولي ورانوي
زاهدان د زماني مستانوي ـــ زړه مي ولي ورانوي

• • •

دلته مه ږاځه جاري ولې نه کوم يارې
ګوره ځان به زياتي نه پريشانوي
زړه مې ولې وږانوي

• • •

زه غريب يم بينوا ستا ديدن قيمت بها
ليلا کله به خولګې اږزانوې
زړه مې ولې وږانوې
نه کوم زه اشنائي بهائي جان بهائي
شيرين عمر ولې خوشې زيانوې
زړه مې ولې ورانوې

د شاعرانو او اديبانو په هکله مو لازم معلومات ورکړل. څرنګه چې متل، لطيفه ټوکه هم په نثر پورې اړه لري نو غواړو چې اوس هم د غه (متل، لطيفه، ټوکه) يو څه وڅيړو او په خلص ډول پرې وغږيږو.

## ۱۷ ـ متل :

دهراولس په شفاهي ادب کښي متل (ضرب المثل) مهم ځای لري.
متل دخبرو يوه بيخي لنډه جمله ده چه د معنا په لحاظ بشپړه او دمفهوم
اومورد په لحاظ عامه وي. يا متل دکوم يوه عاقلانه وينا ده چي په قصدي
اويا اتفاقي ډول يې ويلې وي.

قيام الدين خادم ويلي دي چي : د متل اصلي معني ماته نه ده
معلومه خو د عربي د مثل ، مثال او ضرب المثل معني واضحه ده . زه نشم
ويلای چي متل به د مثل نه جوړ شوی وي مگر د مثل په معني سري پوهيږي
چي داهغه بديعه حکيمانه جمله ده چي د تشبيه ، کنايي او مثال په ډول د
کلام د تحکيم لپاره راوړل کيږي .

ښاغلی معتمد صاحب د متل د ريښي په باب ويلي دي چه :
متل د عربي د مثل څخه جوړ دی او مونږ په خپلو کليو او بانډو کښي
د متل کلمه لږه استعمالوو مونږ چه د خپلو خبرو د تائيد او تثبيت او يا د
خينو اخلاقي توصيو او تولنيز ولار ښوونو لپاره کومه خبره کوو نو وايو
هغه دي ندي او ديدلي چه هوښيارانو ويلي ( پر دی خواره ياد پوړ دی يا
د پيغور ) يعني متل ته د هوښيارانو خبره وايو .

متل د اولسي جهانبيني تفکر او د ذهنيت بيل بيل اړخونه

ترسیموی.

۱- تاریخی لکه: که ته نازوشي نو میرخان به څوک وزیږوي.

۲- جغرافیه وی لکه: پیریا نو ته غزني څه شي دی.

۳- اخلاقي لکه: چه بد کړې بد به پر ځې.

۴- مذهبي لکه: چه اوبه وی تیمم ته څه حاجت نشته.

۵- اقتصادي لکه: دخپلې بړستنې سره پښې غزول پکار دي.

دمتل ستر خصوصیات دا دي چه همیشه کنائي معنی افاده کوی که خپله اصله او حقیقي معنی افاده کړی هغه بیا متل نه دی.

مثلاً: «که غر لوړ دی پر سر ئې لار ده» د «لوړ غر، او پر سر ئې لار» خاص کنائي مفهوم لري چه اورند ونکي پرې پوهیږي او هم د ویونکي مطلب وي او هغه د مطلب کنائي معنی ده او که کنائي معنی افاده نکړی هغه ته متل نشو ویلای.

متلونه دادبي جوړښت له نظره په دوه ډوله دي:

الف- منظوم: دغه متلونه ډیر دوه مسره ایزدي او کله کله ئې مسرې تر دوو او دریو هم اوړي چه دخبرو په ترڅ کښې په خوږ اهنګ ویل کیږي په دې ډول متلونو کښې وزن وقافیه، زیروبم او هر دول استعاري، کنائي او مجازي خای کړی شوی دی مثلاً: مه کوه په چا- چه وبه شي په تا

ځینې داسې متلونه هم شته چه اصلاً لنډۍ دي مګر د متل په بڼه په ورځنی خبروکښې ترې کاراخستل کیږي لکه:
مورې دکلي شرومبې غواړي — لورئې چاړک اُ بزي په غاړه ګرځوینه
دالنډۍ دکڼائې په بڼه هغه وخت ویله کیږي چه دیو غریب سړي لورپېښې له خپل تعرفه اوږدې کړي یابنې جامې واغوندي اویاهم دچاخبره، یارانې ته شوق وکړي نو دلته دې چه دکلي کور خلك دغه لنډۍ ورته دمتل په بڼه تیروي.
ب- منثور متلونه:- هغه وړې، تللې اوپه کنده برابرې جملې دي چه په پوره ایجاز او اختصار مګرپه ډیره خوږه اوخوندوره ژبه ډیرې ژورې معناګانې او بنې حیاتي نکتې بیانوي.
دمنثورمتلونو قسمونه:
۱- تمثیلي:- مورې خرڅوم دې ! ځنګه ؟ داسې چه څوك ئې نه اخلي.
۲- کیسه یي :- چه دیوې پیښې اوکیسې یوه ټوټه اونتیجه وي لکه:
«څوك چه خوب کوي میښې یې نرکټي زیږوي»
۳- تلمیحي:- چه یوې پیښې اوکیسې ته پکښې اشاره شوي دي لکه:
«کیسه خلاصه شوه ویل ادم خان نروګه بنځه ؟» چه په دې متل کښې د ادم خان اودرخانۍ کیسې ته اشاره شوې ده.

۴ - عادی متلونه :- چه اولسي فلسفه ، اولسي افکار ، کلتور ، دودونه ، له یوه نسل نه بل نسل ته د اولس د عامه ذهنیت په منل شوي چوکات کښې لیږدوي . لکه :

وګټه بیا وخته ! یا د ژمي په توده د د ښمن په خوږه مه غولیږه .

۷ - لطیفه :

دغه اصلاً عربي کلمه ده چه د لطیف مؤنثه ده او لطیف په معنی د نرم ونازک او مهربان دی . او په اصطلاح کښې لطیفه عبارت د نیکو او غوره خبرو څخه دی چه د خلکو د خوشحالی سبب ګرځي . چه نمونه ئې په لاندی ډول ده :

یو سړی یوه لیکوال ته راغي او ورته یي وویل چه : یو لیک راته ولیکه . لیکونکي ورته وویل چه : پښه مي خوږیږي هغه سړي ورته وویل : زه خو تاګوم ځای ته نه لیږم او نه په پښه باندی خط لیکي .
لیکوال ورته وویل : رښتیا وائي مګر افسوس هرچا ته خط ولیکم ، زه پخپله ورسره ځم داځکه چه زما په خط نور څوك نه پوهیږي او خپل خط باید پخپله ولولم .

VI - ټوکی :

د ولسي منثور ادب دیوه ځانګړی صفت په توګه له ډیرو پخوا

ښانوڅخه په ولس کښې شته او د انسان د روح د خوشحالتیا او د فکر دارامتیا او د مې لپاره تري کار اخستل کیږي.

د وزګارتیا په وخت کښې ټوکیان په خپل منځ کښې ټوکې کوي. دغه ټوکې کله کله پوچې او له چوکاټه وتلې هم وي لکه: په داداسې پوزه لکه: مشوره. په دا داسې خوله لکه کندول. او نور.

او ځنې ادبي ټوکې هم شته چه مثال ئې په لاندې ډول دی لکه:

یو سړی یو ډاکټر ته ورغی او ورته یې وویل چه: کیده مې خوږیږي ډاکټر ورته وویل چه: څه شی دې خوړلي دي مرض ورته وویل چه: سوی ډوډی مې خوړلې ده. ډاکټر ورته وویل چې: ورشه اول دې د سترګو علاج وکړه که سترګې دې جوړې وې نو سوی ډوډی به دې ولې خوړه.

تردې ځایه مو د نثر او نظم په باب په لنډ ډول معلومات ورکړل نو د دې لپاره چې د ژبې په زده کړه کښې لیک دود او لیک ښود چې د ادبیاتو مهم اساس او بنیاد جوړوي او ډیره د اهمیت وړ برخه ده، نو غواړو چې په ښوونځیو کښې تدریس کوونکو ښوونکو او مینه والو ته د لیک ښود او لیک دود ځنې قواعد او اساسات په راتلونکې فصل کښې وڅیړو.

# پنځم فصل

## لیک دود او لیک بنود

### لومړی) لیک دود :

پاك خدای (ج) انسان ته دوینا او خبرو کولو ستر قوت وربښلی دی د غه قوت د انسان لوړ امتیاز او د انسان او حیوان د بیلتون غټه نښه ده کومی خبری یا کوم معنی وال غږونه چی د انسان له خولی څخه وځی که چیری د علاموا و تورو په چوکاټ کښی څرګند شی لیکلی ژبه ور ته وایي او که نه، دوینا ژبه بلل کیږی .

نو په دی حساب ژبه پر دوه ډوله ده یوه د لیک ژبه ده او بله دوینا ژبه ده یعنی یوه تحریری او بله تقریری ژبه ده .

د تقریری ژبی تاریخ دیر لرغونی او د انسان د پید ایښت سره سم دی، مګر د لیک تاریخ وروستنی دی . څو سره د دی د لیک او خط پیدا کیدو، سا تاریخ چا ته معلوم نه دی . هو ! د دومره خبره معلومه ده چه په لومړی سر کښی انسانانو د شیانو د ښو دلو د پاره د هغو څیرې

رسم کولي او د معانيو د ښو دلو د پاره به يې هم له انځورونو څخه کار
اخست. بيا ورو سته له څير و څخه خبره ښنوا و علا موته راور سيده او
پس له هغه د غږ ونو د ښو دلو د پاره توري او حروف جوړ شول. وايي چې
لومړی انځوروال ليک د مصريانوله خوا او ښنه وال ليک د فنقيانو او
سومريانوله خوا منځ ته راغلی دی.

او له دغو ليکو نو څخه د نړۍ نور ليکونه راوتلي دي د فنقيانوله
الفبې څخه يوناني، لاتيني او دا روپايانو ليکونه زيږيدلي دي او د
سومريانوله ميخي ليک څخه اوستائي، پهلوي او د ختيځ نور ليکونه
پيدا شوي دي.

تر اسلام د مخه د پښتونخوا مشهور ليک خروشتي يا کروتي،
ليک وه چې دوړ دکو په (خوات)، د ننګرهار په (دړونته، او هډه) او د
پيښور په (شا هباز ګړه) کښې يې نمونې او بيلګې موندل شوي دي.
د کروتي ليک دود، د کړيو او حلقو په شان دی او د سومري خط
مخالف شکل يې غوره کړی دی ولي چې: دغه خط د ميخونو
په شان اوږده نيغ شکلونه لري. د (کنشکا) د زماني په
کتيبو کښې د دغه ليک نمونې پيدا شوي دي. (سروليم
جونز) انګريز د بنګال د ايشيايي ټولنې غړی د خروشتي

لیک په باب وایي:

چي د خروشتي لیک ژبه د آریانا ژبه ده او کله چیري په پښتو ژبه کښني چي د آریانا محلي ژبه ده غور او څیړنه وشي نو ښایي چي یو وخت د دغي ژبي په کومك خروشتي ډیر لیکونه ولوستل شي. دی وایي چي د غه لیک د آریانا په ټولو برخو کښني رواج و (اتروډ) نومي روسي پوهاند هم وایي چه خروشتي لیك د هند و کش په سویلي خواو کښني مستعمل و او له ښي خوا نه کیڼي خواته لیکل کیده.

د خروشتي لیک په باره کښني تازه او نوي معلومات په دي ډول دي. د کروني لیک دود کتیبي په کندهار (ختیځ افغانستان) او پنجاب کښني پیدا شوي دي. د غه لیک دود د راجه اشوك په زماني پوري اړه لري «۳۰۰۰ ق م» د غه لیک دود له ښي خوانه کیڼي خواته لیکل کیږي. پخوا داخیال کیده چي خروشتي لیک دود له سامي لیک دود څخه اخیستل شوي دي مګر اوس معلومه شوې ده چي د (مهنجو دارو) د زماني لیک دود (۴۰۰۰ ق م) هم له ښي خوانه کیڼي خواته لیکل کیده نو ځکه له سامي ژبي سره د کروشتي لیک دود نښلول خوشي او بي معنی خبره ده د (۳۰۰۰ ق م) څخه د مخه هم د کروشتي لیک دود کتیبي موندل شوي دي د راجه اشوك په

دیرشو (۳۰) کتیبو کښنې دوه په کروښتې لیک دود دې په دې لیک دود کښنې دغه څلور هندسي دعمودې لیکو په ډول راغلي دي .

/// - //// - /////

او دغه هندسي کټ مټ د (موهنجوداړو) د زمانې په کتیبو کښنې هم لیدل شوي دي حال دا دی چې د دواړو د زمانې ترمنځ درې نیم زره کاله (۳۵۰۰) توپیر دی په هرصورت د پښتونخوا د زاړه لیک شکل هرڅنګه چې وه خو هغه لیک د اسلام تر راتلو وروسته له منځه ولاړ او په ځای ئې عربي لیک منځ ته راغی .

لومړي پارسي ژبه د عربي لیک په چوکاټ کښنې پرېوتله او وروسته پښتو ژبې هم دغه جامه واغوستله . د عربي لیک په سلسله کښنې څو ډوله لیکونه میدان ته راووتل لکه : نسخ ، تعلیق ، ثلث ، رقاع اونور . زیاد شهرت پکښنې نسخ ومونډ .

په پارسي کښنې نستعلیق رواج پیدا کړ چې د عربي له نسخ او تعلیق څخه جوړ شوي دي . لاکن پښتو ژبې د غه دواړه لیکونه وساتل له پخوا زمانې څخه تراوسه پورې پښتو هم په نسخ لیکل کیږي او هم په نستعلیق . مطلب دا چې پښتو ژبه د اسلام تر راتلو وروسته د عربي لیک په چوکاټ کښنې ولویده مګر هرکله چې

دغه چوکاټ د پښتو ژبې د ټولو غږونو ښودلو د پاره تنګ ؤ نو ځکه په عربي الفبې کښې ځينې سموني هم وشوې او د پښتو د خاصو غږونو د پاره ځينې نښې او علامې هم جوړې شوې. وايې چې دغه سمون د سلطان محمود غزنوي د نوميالي وزير حسن مومندي په وينا د قاضي سيف الله له خوا شوې دی او ده د پښتو د خاصو توړو د پاره ګوښې نښانې ټاکلې دي. ميا روښان هم په پښتو ليک دود کښې څه ناڅه سمون راوستی دی.

وايې چې ده د پښتو ليک دود په پاره کښې يوه رساله ليکلې وه، دغه شان خوشحال خان هم د پښتو ليک دود په سمون کښې ګوتې وهلې دي او يو راز څنځيرې ليک يې راويستلی ؤ چې د لنډ ليک په نامه ياديده. تر دغه وروسته هم د پښتو د ځينو غږونو په ليکلو کښې څه ناڅه بدلون پيښ شوې دی مګر ډير ژر يې بيا خپل اصلي رنګ غوره کړی دی د مثال په ډول د پښتو (ځ) څه زمانه د (څ) په شکل ليکل کيده بيا ځينو کسانو د (ج) په ډول هم وليکله خو آخر يې خپل پخوانی شکل (ځ) ټينګ کړ ولې چې! دغه شکل د تذکرة الاوليا په زړه قلمي نسخه کښې هم ليدل کيږي دغه شان د پښتو د مفرد و مرکبو کلمو په ليک دود کښې هم ډير تغيرونه پيښ شوي دي، خو ډير ژر خپل اصلي

شکل ته ورګرځید لی دی .

I - املاء :

د لیک په لیکلو کښې د املاء خیال ساتل لازمي او ضروري خبره ده داځکه چې که کومه کلمه صحیح ونه لیکل شي نو لوستونکي ترې بنه مطلب نشي اخستلای که څه هم په املائي لاربښوونو ډیر کتابونه لیکل شوي خو د لته د ضرورت وړ یو څه لیکو چې په لاندې ډول بیانیږي .

ا - د املاء تعریف :

املاء په لغت کښې مهلت ورکولو او ډکولو ته وائي . او په اصطلاح کښې املاء خپلې خبرې یا د بل چا خبرې په صحیح ډول لیکلو ته وائي .

که چیرې څوک له خپل ځانه څه نشي لیکلای مګر د بل لیک له مخې یې نقل کوي د غسې لیک ته املاء نشو ویلای بلکه د غه ډول لیک ته نقل وائي .

ب - د املاء د لیکلو مهم ټکي :

د املاء په لیکلو کښې باید د الاندې ټکي په نظر کښې ونیول شي :

ا - څه چې لیکي باید د صحیح تلفظ له مخې یې ولیکي او د عوامو د تلفظ پسې ولاړ نشي لکه په پښتو ژبه کښې الک وائي او هلک لیکي یالکه اکي چې اصلي یې هکي ده او یا لکه : شهر چې اصل یې ښار ...

۲ - دوه بیلې کلمې باید په لیکلو کښې سره ونه نښلول او هره یوه باید جدا ولیکو لکه: ټول سړي چې باید ټولسړي ونه لیکل شي.

۳ - دوه کلمې چې یو ځای لیکل کیږي لکه: ټولیمشر، باید جدا ونه لیکل شي. او یا لکه: خپلواک چې (خپل) د (واک) څخه بیل نشي.

۴ - دا هم ضروري ده چې یوه کلمه د بلې په شان ونه لیکو لکه: پوښتنه چې د «تپوس» په معنی او پښتنه چې د پښتون مونثه کلمه ده باید په لیکلو کښې یو له بل سره فرق ولري یا لکه: نوې چې د «جدید» په معنی او نه وي د «نباشد» په معنی باید په لیکلو کښې فرق ولري.

۵ - په فارسي، عربي کښې ځینې کلمې شته چې د ځینو نورو سره يې فرق نه کیږي لکه: «شیر»، «شیر» چې یوه کلمه د شیدو او بله يې د زمري په معنی ده چې د جملې له مخې يې معنی معلومیږي مګر په پښتو لیک کښې د دغسې کلمو فرق په اسانۍ سره کیږي ځکه په پښتو کښې او ږده (ې)، د ځرګندی (ي) سره فرق لري لکه: (تیر، تیر) ولې بیا هم په پښتو کښې داسې کلمات شته چې د جملې له مخې يې معنی معلومیږي لکه: (خوله، خوله، خوله) لکه: په دې لاندې جملو کښې: خوله يې په سروه، په خوله کښې يې خبره نه ده یږي

خوله ئې وکړه .

٦ - په پښتوکښې د نهی او نفي ( نه ، مه ) توری له افعالو څخه بیل لیکل کیږي لکه : ( نه ځي ، نه کوي ، نه ویني ) ( مه وایه ، مه کوه ، مه ځه ، مه غواړه ) . مګر په ( نشي ، نشته ، نکړي ، مشه ) کښې یوځای لیکل کیږي .

٧ - د پښتو کلمو په لیک دود کښې د پخوانیو پوهانو او لرغونو لیکوالو د لیک دود پیروي په کار ده . د غه لیک دود د زړو قلمي نسخو او کتابونو له کتنې څخه وروسته معلومیږي . لکه د ( اوس - اودس ) کلمې چې په زړو نسخو کښې د غه ډول لیکل شوي دي ، د ( هوس ، آبدست ) په شکل یې لیکل ښه نه دي .

٨ - د پښتو د ګرامري قاعدو متابعت او منل ، چې د اهم د کلمو د لیکلو لپاره یولوی اساس دی لکه : د ( کوي ، وکړ ) فعلونه چې د قاعدې له مخې د ( کول ، کړل ) له مصدر ، و څخه جوړیږي او په کاردي چې د قاعدې له مخې د غه شان و لیکل شي . د ( کا ، وکه ) په صورت ئې لیکل د مصدر له فعلي مادې څخه مخالفت کول دي .

٩ - بل د لغت ، ریښه ایره لټول هم یو پوخ اساس ګڼل کیږي ، لکه : ( یولکه ، یوازې ، استازی ) چې له ( ل ، یو ، استول ) څخه جوړ شوي دي . او ( که ، ازی ) پکښې د لاحقو شکل لري . د غه دوه

کلمې د صفت حیثیت لري یا هغې چې اصل ریښه یې (ها) ده نو بناڼې چې په (ه) ولیکل شي. د غه شان (اوري - بیره) په الف لیکل په کار دي ولې چې اصل کښې (او ر + ی) ده چه داورغوندی سوړ والی لري .

۱۰ - بل د التباس او یوشان والی لري کول دي چې دا هم یوه ضروري خبره ده لکه: (ځوړ ، ځړیدل) چې د (زوړ ، زړیدل) د التباس له کبله په (ځ) لیکل کیږي. د غه شان بناڼې چې (ځینې او ځنې) چې لومړي ضمیر او دوهم ادات دي په لیک کښې سره بیل کړي شي. یعنې ضمیر د منځ په (ی) او ادات یې (ی) لیکل په کار دي. په دې دول په (ویره - بیره) کښې اول شکل ښه دې ولې چې بیره دیوې ونې نوم هم دی .

۱۱ - د پښتو په خپلو کلمو کښې د عربي خاص توري لکه (ق، ع، ط او نور) نه راځي نو ځکه د پښتو خپلې کلمې لکه: (توکه ، پړک ، تک) په عربي تورو (توقه ، پړق ، تق) لیکل سم نه دي .

۱۲ - د پښتو نوم نه او کلمې په زوره د عربي او پارسي په رنګ لیکل یعنې د ړ نول او حلقي کول ناسم او بې ځایه کار دی . لکه چې ځینې کسان د (ځدران ، ځاځي ، کږه ، کږ) او داسې نور نومونه

په لوی لاس غلتوی او (جدران، جاجی، لجه، کج) لیکی دغه د پارسی او عربی په شکل لیکل یو بی اساسه او بی معنیٰ او غلت کار دی.

۱۳ - یوه کلمه تل په یوه شکل لیکل په کار دی ولی چی یوه کلمه په څو ډوله لیکل د ناپوهی او شکمنی نښه ده لکه د اور کلمه چی د کوزی پښتونخوا ځینی لسان یې کله (هور) کله «وور» کله «اور» لیکی.

۱۴ - د (می، دې، پرې، تری) او داسی نوری کلمی چی په پای کښی سپک زیرلری تل په کوچنی (ی) لیکل کیږی د (چه، توری هم دوینا له مخه (چی) لیکل پکار دی.

۱۵ - د ټولو پښتو کلمو سپک پیښ په (واو) لیکل کیږی لکه: بوخت، لومړی، کوچنی.

۱٦ - د پښتو ټول افعال چی د سرینه (و) په زیاتولو جوړیږی په هغو کښی له (و) سره د (ا) لیکل غلت دی، لکه: وکوت، ولید، وګوره، وخوره. چی اوکوت، اولید، اوګوره، اوخوره شکل یې غلت دی.

۱۷ - د (زه، مونږ، مونږ) ضمیرونه د «هوز» په «ز» سره لیکل کیږی. که په پښتو «ځ» د لیکل شی نو د امر د فعل (ځه) سره التباس پیدا کوی.

په پښتو کښی ځینی توری شته چی په فارسی او عربی کښی نشته

د دغو تورو ځای پېژندل په پښتو املاء کښې ډیر اهمیت لري چه هغه دادی :

ښ :- دا توري ځینی پښتانه (خ) ته نږدې اداکوي او ځینی یې داسې تلفظ کوي چه اواز یې د (ش) غوندې وي او په داسې لغتونو کښې لیکل کیږي لکه :

(ښه، لوښی، اوښ) چې څوک یې یو راز او څوک یې بل راز تلفظ کوي. کومه کلمه چې یوازې (خ) یا یوازې (ش) اداکیږي هلته دغه توری نه لیکل کیږي . لکه : (ختة، خاوره، شکه، شفتالو) په دغه اساس باید (خندل) په (خ) (شندل) په (ش) او (ښندل) په (ښ) ولیکل شي چې د دري واړو کلمو معنی ګانې وساتل شي .

ږ :- دا توري ځینی پښتانه لکه (ژ) او ځینی یې لکه (ګ) ادا کوي، باید په هغو کلماتو کښې ولیکل شي چې د لهجو د اختلاف په وجه د غه دوه آوازونه ولري چې هم (ژ) تلفظ شي او هم (ږ) - تلفظ شي لکه : ږلی، لږ، کوږ، .

ځ :- د دې توري اواز د (ز) څخه لږ څه د روند دی چې په ځینو پښتو کلماتو کښې یې لیکل ضروري دی لکه : (ځان، ځنډ، ځیرك) او نور ...

په پښتو کښې ځینې کلمات شته لکه (ځه) چې د تللو امر دی. که دا کلمه په (ز) ولیکل شي نو (زه) د متکلم ضمیر تری جوړیږی او داسی نور.

کوم کلمات چې په فارسی کښې په (ج) او په پښتو کښې په (ځ) ویل کیږی نو هلته باید هم دغه پښتو (ځ) ولیکل شی لکه:
(ځوان، ځنګل، ځان).

 څ:- د دی توری تلفظ د (س) توری ته نژدی دی او ځینې کسان یې د (س) پرځای استعمالوی که د دغه توری پرځای (س) ولیکل شی نو د ځینو کلماتو معنیٰ تغیروی لکه: (څټ، څوک) چې (سټ، سوک) تری جوړیږی.

ډ، ټ، ړ:- دا توری هم په پښتو املاء کښې ډیره برخه لری چې د ځای پیژندل یې ضروری دی او صحیح تلفظ یې پکاردی که یو لیکلوال په لیکلو کښې د (ټ) پرځای (ت)، د (ډ) پرځای (د) او د (ړ) پرځای (ر) ولیکی نو د ځینو کلمو معنی بدلیږی، د (ور، تول، دار) څخه (ور، تول، دار) جوړیږی.

ڼ:- دا توری لکه د (ن) څخه د ړوند ادا کیږی (منه، بڼ، تڼی پخوانو لیکوالو او س هم ځینې لیکوال دا توری د (نړ) په شکل لیکی چې دوه توری (ن) او (ړ) سره یو ځای کړی او دیو

توری نوم یې ورباندی ایښې دی.

داتوری باید په بسیط ډول (ڼ)، ولیکو څکه چې په مرکب ډول یې لیکل په ځینو کلماتو کښې مشکلات پیښوی لکه ، خونړی، کونړ، نړول، اوداسې نور.

## یادونه

د (لمبه، خمبه، چمبه، تمبل، سمبال،) کلمې په (م) لیکل یکار دی او په (ن) باندی (لنبه، خنبه، چنبه... تر آخره) لیکل سم نه دی.

## II - د مستعارو کلمو لیکنه:

په هره ژبه کښې د نورو ژبو کلمې په مستعار ډول خامخا ورننوځي په دې اساس په پښتو کښې هم د عربي، پارسي او نورو ژبو کلمې راننوتې دی.

دغه مستعاری کلمې په دوه ډوله دی یو دول په خپل اصلي شکل او بل ډول یې په اوښتلي شکل لیکل کیږی.

لومړی ډول:

الف: دعربي ټولی علمي، مذهبي اصطلاحگانی، نوموځه او اعلام چې بې له کوم تغیره پښتو ته راننوتې دی په خپله اصلي بڼه

لیکل کیږي لکه: صرف، نحو، منطق، معرفت، حج، ذکاة، قبله، مدینه
قاهره، حمید، محمود ....

ب: هغه کلمې چه په خواصو پورې اړه لري، یعنې استعمال یې عمومي او ډیر نه وي په هغو کلمو کښې هم بدلون نه راځي او په خپل شکل لیکل کیږي لکه: قاضي، حاکم، عالم او نور.

دوهم ډول:

الف:- هغه کلمې چې زیاتې استعمالیږي او ضرورت ورته ډیر وي په اوښتلي شکل لیکل کیږي لکه: وخت - خلك - کمیس - مازیګر - خامخا - پتیر - مشال چې اصل یې (وقت، خلق، قمیص، نمازدیګر خواه نخواه، فطیر، مشعل) دي.

ب:- هغه کلمې چې هم پکښې معنوي او هم پکښې لفظي تغیر راغلی وي په اوښتلي شکل لیکل کیږي، لکه: اورته = عورت، ایسار = حصار.

ج:- هغه کلمې چې استعمال یې عام وي او په منځ او پای کښې یې (ط، ص، ث، ع) راغلي وي لکه: غلت - ختا - جوسه - خلاس - لال، چې اصل یې (غلط، خطا، غوصه، جوثه، خلاص، لعل) دي.

یادونه:- دوهم ډول کلموته پښتو شوي کلمې وایې، په کومه کلمه کښې چې دوه یا زیات عربي توري راشي نو هغه تل د پښتو په ورسره نژدې

توروا وړی لکه: (قمیص - قحط) چې د (کمیس، کاختي) په شکل اوښتي دي. د (قفل - قاشق - مصرع - طمع) کلمې اوس (کولپ، - کاچوغه، مسره، تمه) لیکل کیږي. په عمومي ډول (ص)، (ث)، په (س)، (ط) په (ت)، (ق) په (ک)، (ذ، ظ) په (ز)، (ع) په (الف) او ړی، یوازې په «وخت، تاخ» کبنې (ق)، په (خ) او (چاغ) کبنې (ق) په (غ) اوښتي دي.

بله مهمه خبره دا ده چې د پښتو یو څه کلمې چې ځینو کسانو په (ق، ص، ط، ع) لیکلي دي هغه په اصل او ریښه کبنې پښتو دي او په غلطي معربي شوي دي.

نو ځکه د غسې کلمې په خپل اصلي شکل لیکل پکار دي. لکه: (کتره، غیچي، کوتي، کیزه، کتار، کچر، کولبه، سابون، لال، مرکه) چې غلت - شکل یې دا دي: (قطره، قیچي، قطي، قطار، قچر، قلبه، صابون، لعل، معرکه).

د املاء ارزښت: که املاء صحیح و نه لیکل شي بښه افهام او تفهیم صورت نه نیسي، او که چیرې یو لیکونکی ډیر ښه مضمون ولیکي او املایي غلتي ولري نو د مضمون ارزښت له منځه ځي او د لیکونکي موقف را ښکته کوي.

# دوهم - لیک ښود (انشاء):

په هره ژبه کښې له لیک دود څخه وروسته د لیک ښود خبره منځ ته راځي د لیک ښودنې مطلب دادی چې څرنګه لیکنه پکار ده؟ کوم ډول لیکل ښه دي؟ د ښې لیکنې ښیګڼې کومې دي او مونږ کوم ډول لیکنې ته ښه لیکنه ویلای شو؟

ددې پښتنو ځواب به په وروسته کرښو کښې وګورې...

مونږ دلته دلیک ښود کلمه د عربي انشاء په معنی اخلو په عربي لغت کښې انشاء ذیونوی شي د پیدا کولو په معنی راځي. په اصطلاح کښې انشاء دې ته وائي چې: سړی دخپلې پوهې په قوت خپل خیال او فکر په ښو الفاظو او عباراتو کښې ښکاره او څرګند کړي. مګر د لیک ښود مفهوم تر انشاء هم عام او پراخ دی. په لیک ښود کښې هر راز لیکنه راتلای شي. ښوی خیال وی او که زوړ، خو چې د بیانولو ډول یې خوندور او په زړه پورې وي. په یوه لیکنه کښې دوه مهم اړخونه په نظر کښې نیول کیږي.

لومړی اړخ معنوي او دوهم لفظي دی.

په معنوي اړخ کښې فکر، خیال، معنی او مقصد شاملیږي او په لفظي اړخ کښې توري، کلمې، عبارات او جملې راځي. نو دادی مونږ به

په ورسته کړښو کښې دغه دواړه خواوې وځیړو او په دې موضوع

باندې لږه ډیره رڼا اچوو مګر دا خبره هم باید وکړو چې دلته زمونږ

مقصد په عمومي لیکنه یا عام لیک ښود کښې دی، یعنې مطلب دا دی

چې دعامې لیکوالې صفات، ښیګړې او لیارې چارې وښیو. له دې

عمومي کتنې څخه وروسته کېدای شي دلیکوالې په خاصو څانګو هم څه

خبرې وکړو. دژبې یو غښتلی لیکوال دیو پوخ او تکړه دېوالګر

مثال لري. دېوالګر خښتې، ګټې او نور شیان اخلي او په پوره ذوق

او خاص مهارت ورځنې دېوال جوړوي.

دغسې لیکوال هم توري، لغتونه، محاورې او اصطلاحګانې سره

یوځای کوي او په پوره ذوق او سلیقه ورڅخه جملې او عبارتونه تیاروي.

لکه چه دیوې خرابې تېږې په لګولو دېوال خراب او بې ډوله راځي، دغسې

دیو سخت او شډل لغت په راوړ لو هم عبارت او سبک بې خونده او بې

ډوله کېږي. دلغاتو زېږوالې او نااشنایي دفصاحت او خوږوالي دښمنان

دي نو ځکه دلیک ډول دښه والي لومړی شرط دښو الفاظو او لغاتو

پیدا کول دي.

ګرامري غلطي او خرابي هم یوه لیکنه بې خونده کوي او دبلاغت د

دایرې څخه یې وباسي نو ځکه دژبې دقاعدو او لارو پېژندنه هم یوه

ضروري خبره ده دغه شان رښتني ذوق او ښه سليقه هم په دې
لاره کښې پوره کومک او مرسته کولای شي. د ښې او پخې ليکنې د پاره
يوه ژوره علمي مطالعه، د پخو ليکوالانو د کتابو کتنه، ژور فکر او پوخ
نظر پکار دی. د ليکوالۍ لومړی اساس او تاداو همدغه ژور فکر
او پوخ نظر دی که چيرې په لومړي سر کښې د موضوع په خوښونه
کښې ښه غور وشي، د مقصد او مطلب تګلې په دماغ کښې راغونډه
کړې شي او بيا ورته د کلمو او تورو په ښايسته چوکاټ کښې ځای
ورکړی شي نو خامخا به يوه ښه ليکنه منځ ته راشي. که په يو لند نظر
ورته وګورو نو ښه ليکنه هغه ده چې د ژبې له خپل چوکاټ او رنګ ځنه
ونه وځي.

که چيرې مونږ په خپلو ليکنو کښې د پښتو ژبې د اصلي چوکاټ ځنه
ونه وځو او د محاورې او خبرو اترو لمن پرې نه ږدو نو مونږ به
د ليک د ښه والي د پاره پوره خدمت کړی وي.

هره زمانه او هر وخت د ليکلو ځانله سبک او دود لري. دغه
شان په هر وخت او زمانه کښې ښه سبک هم وي او خراب هم ،
ورهم وي او ناوړه هم. نو ځکه د ښه او ناښه پيژندل د ليکوالو د
پاره په توره شپه کښې د چراغ او مشال لري.

دی کښنی شک نشته چی د پخوانو غښتلو لیکوالو سبکونه پاخه او خواږه وی . مګر د نویو د کوچنیو لیکوونکو سبکونه پیکه او بی خونده وی .

د یوی ژبی لیک د ول همیشه د د غسی کسانو په لاس خرابیږی او په ژبه کښنی بی مزی عبارتونه او شد ل لغتونه را ننوځی د وے د ښه او نابنه ، خوږ او ناخوږ توپیر نشی کولای ، د یو اولس اصلی ریښه ور ته نه وی معلومه ، ذوق یی بی باوره وی د ژبی د قاعدو څخه ناخبره وی د پښتوله زړو ادبی کتابو نو سره نا اشناوی د پخوانو استاذانو په لیار ونه ځی د ( وږ او نا وږ ) د خوښولو د پاره ورسره کوم فکر نه وی ، نو د غسی کسان چی څه لیکی هغه به هرومرو بی مزے ، بی خونده او د پښتوله خپل رنګ څخه ډیر لری وی .

په او سنی وخت کښنی د فارسی کمزورو ترجمو د پښتو د لیک د ول په مانی کښنی یی یوه ګډه وډی پیښه کړی ده .

د مثال په د ول په یوه اخبار کښنی ( بمباری لا ینقطع ) په ( نه شلیدونکی بمباری ) ترجمه شوی وه په دی ترجمه کښنی د پښتو رنګ څه چی د پښتو بوی هم نشته .

داسی پښتو په زړو پیریو کښنی چا نه ده ویلی نو ځکه د ی پلوته پوره پاملرنه او د پښتو په لیک د ول باندی لورینه پکار ده .

اوس په اخبار نوکښي له ښي او خوږ ي پښتونه کړ کيچنه پښتو ډيره شوي ده .

ددي خبري يو علت د ليکونکو تن اساني ، بي پروايي او بي درد ي ده او بل سبب يې د پوهي او مطالعي کمزوړ ے او د معلوماتو نيمګړتيا ده که چيري نوي ليکونکي د غه دواړه کمزوري له ځانه ليري کړي او پښتو ته د يو مسلک په سترګه وګوري او د يو امانت په توګه يې وړوړ ي نو هغه وخت کيد اي شي چي پښتو ليک ډول له خرابي او ګډوډي څخه بچ پاتي شي او په چپل خوږ رنګ او ښا يسته بڼه کښي د ودي او ترقي لوړ ي څوکي ته وخيژي ددي مقصد د پوره کولو په لار کښي غواړو چي د ښي ليکني او خوږ ليک په باره کښي خپله څيړ نه ګرانو ليکوالو ته وړاندي کړو .

۱ - د يو مضمون د ليکلو لومړ ي پوړ ي د موضوع او مطلب ـ خوښول او غوره کول دي يعني بايد يو ليکوال د ليکلو د پاره يوه موضوع او مطلب په فکر کښي ښه واړوي راواړوي ولي که چيري د يو مضمون په شاوخوا کښي سړي غور او فکر ونه کړي نو بيا د هغو د پاره ښه کالب او چوکاټ پيدا کول ګران دي بې فکره يو مضمون ليکل داسي مثال لري لکه چه سړ ي په سيند کښي بې ګودره ورګډ يږ ي .

۲-موضوع دخوښولو نه وروسته پکار دی چی په ټا کلی موضوع کښې پوره معلومات راغونډ کړای شي او له باوري ماخذو نو څخه پوره مسائل او مواد را ټول کړی شي څکه چی بی له باوري معلوماتو او کافي موادو څخه یو مضمون لیکل هسې په وچه ځمکه باندې لامبو وهل دي .

۳- ښایي چی یو لیکوال خپل مضمون په داسې ډول او رنګ شروع کړي چی له یوي خوانه په لوستونکي کښې د مضمون د لوستلو شوق او تنده و اچوي او له بلي خوانه پکښې په کنایي ډول د مقصد او مطلب پلوشي وځلوي یعنی پکار دی چه مقدمه د مطلب سره ښه ارتباط او مناسبت ولري .

۴ - د مضمون تادو او تمهید باید ډیر پوخ ، معقول او زړه راښکونکي وي . مګر ښائي چی مقدمه ډیره اوږده او ستړي کوونکي نه وي په اوس وخت کښې داوږدو مقدمو لیکلو دود له منځه تللی دی او لخوځوك مقدمه نه لیکی او که لیکي یی نو ډیره لنډه او بسیطه وي .

۵ - ښائي چی مضمون تر پایه پوري په یوه کچ ولیکل شي یعنی پکار دی چی د سند او دریاب په شان هوار لار شي او ورو ورو

دمضمون ژور تل ته ځان ورسوي د سيلاب او بو په څير يوه شيبه غورزنګ وهل او بيا پريو تل او تيتيدل ديوه ليکوال دکمزوري او بې آبې لويه نښه ده .

٦ - دخپل مطلب دثابتولو دپاره تاريخي، منطقي، فلسفي دليلونو څخه کاراخستل پکار دي ښايي چي هراستدلال دعقل، منطق، تجربې، طبيعيت، او فطرت په پخو ستنو کلک ولاړ وي. په تشو ادبي الفاظو او شاعرانه کلمو باندې يعني يوازې دجذبې احساس او تخيل په بنياد باندې ديو مضمون دماني درول داومتوب او کمزوري نښه ده .

٧ - يو ليکوال بايد چي دموضوع او مقصد له کرښې څخه دباندې ونه وځي دموضوع پرېښودل يا په يوه خبره کښې بله را اچول يا له موضوع نه دير ليري وتل دليکوالي فن کښې لويه کمزوري او ګډوډي ګڼل کيږي .

٨ - ښائي چي ديو پښتون ليکوال فکر، مقصد، تخيل هرڅه پښتني وي دغه شان پکار دي چي استعاري او تشبيه ګاني هم د خپل چاپيريال وي ځکه چي دبل چانه داستعارو استعاره کول د کمزورتيا لويه نښه ده .

۹ ـ دیوه پاخه لیکوال د پاره د خپلی ژبی ادبی خپلواکی ساتل ډیرضرور ، بلکه لازمی خبره ده . هره ژبه ځانله رنګ اوخونداو ادبی جوړښت لری ځانله خپل سوچه تعبیرونه لری نوښانئ چی دغه خپل رنګ ، ښه اوجوړښت یی په ډیرغورو ساتل شی اود نورو ژبوترجغ لاندی را نه وستلی شی .

۱۰ ـ په ښه شان او ښه تعبیر له خپل مضمون څخه یوه نتیجه اخیستل اوپه ادبی رنګ کښی د مضمون بس کول د ښی لیکنی اوپوخ لیک ډول غوره صفت دی .

۱۱ ـ یو مضمون په داسی وخت کښی لیکل پکار دی چی طبیعت په ټوله معنی تیاروی ، اوفکراوبدن ستړی اوستومانه نه وی ولی چی په دماغ اوفکرباندی بوج اچول اوپه وچ زورزورباندی یوڅه لیکل خامخا کمزوری پیښوی اوپه زړه پوری مضمون تری نه جوړیږی . دغه شان په ډیرکړاو اوزړه چاودون داوچتواوکړانو الفاظوراټولول هم موزون اومناسب کارنه دی . مطلب دادی چی له خپلی وسی نه زیات زور لګول په لوی لاس ځان ناکامول دی .

۱۲ ـ په یوه لیکنه کښی د معنوی ارتباط اوتړون خیال ساتل ډیر مهم کاردی . یعنی ښائی چی په جملو کښی د معنوی پیوستون کړۍ

ونه شلیږي او د مضمون تسلسل او پر له پسې والی خراب نه شي. غښتلی لیکوال هغه دی چې د مضمون بیلو بیلو برخو ته پوره ارتباط او پیوند ورکولای شي.

۱۳- په پوره لیکنه کښې درانه خواږه او تللي الفاظ استعمالول د لیک د ښه والي لویه نښه ده او یو ښه لیکوال تل د الفاظو په خوږ والي او تول پسې ګرځي.

۱۴- د هر علم ځینې خاص اصطلاحات په ځینې ځینې ځای راوړل پکار دي مثلاً: علت په منطق کښې د سبب په معنا او په صرف کښې د نقص په معنیٰ دی نو ځکه یې د استعمال د ځای پېژندل ضروري دي[1]

۱۵- د مفرد په ځای د جمع ضمیر راوړل د پښتو له ځینې اصلي روح څخه مخالف کار دی. مثلاً: «زه وایم» پر ځای «مونږ وایو» ښه تعبیر نه دی د غه شان د «دی» پر ځای د جمع ضمیر «دوی» راوړل یو ناوړه استعمال دی. ډیر کسان دا کار د ډناوي په نیت کوي مګر ډېر بې له قاموس او چوکاټ څخه وځي او یوه لویه اشتباه تری پیدا کیږي نو ځکه

[1] - پدې برخه کې ځینې ټکي د ښاغلی (اثر) له پښتو ادب (ص ۶۸) څخه اخستل شوي دي.

دیوتن د پاره د جمع ضمیر راوړل ښه نه بریښي .

۱۶ - په یوه جمله یا یو عبارت کښې د یوې کلمې یا یوه لفظ تکراروَل او بیا بیا راوړل ښه صفت نه دی، د غه شان د تورو او ادا تو تکرار هم عبارت بې خوندہ او له ښایست څخه یې وباسي .

۱۷ - ښایې چې په یوه لیکنه کښې مبتذلې او سپیڅلې یعنې داسې الفاظ راوړل شي چې هغه د پوهو لیکوالو له خوا مبتذل شوې وي او په ژبه او لیک کښې یې خپل ځای نیولی وي مثلاً : که څوک په خپله لیکنه کښې د « کا که توب، طمطراق » کلمې راوړي نو دی ته مونږ مبتذلې او سپیڅلې الفاظ نشو ویلای ولې چې د ټولو پوهو لیکوالو په لیکنو کښې یې ځای نه دی نیولی .

۱۸ - بل د کلمو په خوښولو او میرلو کښې لنډیز او دو نیا اسانۍ ته هم کتل پکار دي لکه : د « پیږ » کلمه چې له « پرېږ » څخه لنډه او اسانه ده د غه شان په « خبره و مبتذل شوه » او خبره و مبتذله شوه » کښې لومړی شکل غوره دی ولې چې لنډ او اسانه ده او د تذکیر او تانیث فرق د مرکب فعل په دوهم جز کښې په کار دی . په اول جز کښې د غه بیلتون ته هڅ ضرورت نشته .

۱۹ - د کلمو په خوښولو او راوړلو کښې ادبي لهجې ته زیات

اهمیت ورکول پکاردی لکه : اخیستل چې ځنې خلك يې «اغستل» بولي مګر سپیڅلی ادبي لهجه نه ده یادراوړه په ځای (راوړه) اود جوړوي پر ځای (جیړوي) ادبي لهجه نه ګڼل کیږي.

۲۰ ـ عمومي لهجه په یوه محلي لهجه باندې غوره ګڼل پکاردي لکه : (غابښ ، غوښه) چې ځيني خلك يې «ګابښ، ګوښه» بولي مګر عمومي لهجه نه ده.

۲۱ ـ سپك ، بازاري او بې نزاکته الفاظ راوړل دلیکولی دکمزورۍ نښه ده مثلاً که څوك دخوړلو پرځای د «نغړلو» کلمه راوړي نودا به خوندور او مناسب تعبیر نه وي.

دغه شان بې ځایه د «لوچك ، سرکوزي» کلمې راوړل هم مناسبې نه دي.

۲۲ ـ هرلیکونکی چې کومي کلمې لغوي، اصطلاحي ، حقیقي او مجازي معناګانې ورته معلومې وې. او دخلکو او قوم بلکې دهرې سیمې اصطلاح نه هم پوره خبروي ولی که چیرې دکلموسمې معنی ګانې ورته معلومې نه وي نوبیاتري په سم ډول کار نشي اخستلی.

۲۳ ـ درنې ، نا اشنا زیږې او شدلې کلمې راوړل هم دیوه لیکوال په کمزورۍ او بې ذوقۍ باندې دلالت کوي مثلاً : د «بشپړ، چوپړ،

،اوپرېر» کلمې استعمالول په ژبه او عبارت کښې سختي او ګراني پیدا کوي او یو عبارت له فصاحت څخه باسي.

۲۴ - ترڅو چې په خپله ژبه کښې یوه کلمه موجوده وي باید چې دبلې ژبې کلمې استعمال نه کړې شي مثلاً «دژوند پرځای حیات» دترکاڼ پرځای «نجار»... راوړل دیولیکوال دبې پروائې او بې فکرۍ نښه ده.

۲۵ - په دوو عربي کلمو کښې دضرورت په وخت کښې هغه کلمې راوړل پکار دي چې دخلکو په خوله کښې جاري وي او دهغوی غوږونه ورسره اشناوي لکه: د«مستفید شي» پرځای «فایده واخلي» د«تصمیم» پرځای «نیت» او داسي نور.

۲۶ - بناځې چه دنورو ژبو الفاظ دپښتو ژبې دقاعد ولاندې راوړې شي. لکه: «عالمانو ویل» ځینې خلګ چې دغه «و» نورکو نودژبې دقانون ځني پینه اړوي.

۲۷ - دعربي جمعو پرځای پښتو جمعې جوړول غوره دي لکه «دلایلو، اقوامو، علماوو، اوصافو پرځای» دلیلونه، قومونه، عالمان او صفتونه راوړل ښه دي.

۲۸ - دپښتو په اصلي ګرامر جملې جوړول پکار دي که چېرې

په قاعده او قانون جملې جوړې نشي نو د لیکوالې کمزوری ده مثلاً: لږ ډوډۍ او لږه ډوډۍ کښې دوهم شکل غوره دی او که چیرې د نارینه د پاره «دی یا هغې وویل» استعمال کړی نو له قاعدې څخه تیری کول دی نو باید «ده یا هغه وویل» استعمال کړی شي.

۲۹ - جملې باید «لنډې، لنډې او د خلکو د محاورې او خبرو اترو سره سمې وي له محاورې وتلې جملې جوړول د پښتو خرابول او د ځان بدنامول دي. ډیرې اوږدې جملې جوړول چې مبتدا او خبر سره پکښې ډیر لرې وي په پښتو لیکوالې کښې یو ستر عیب گڼل کیږي. مگر ډیر لنډیز چې مطلب او مقصد ته زیان رسوي هم ښه صفت نه گڼل کیږي.

۳۰ - د یو لیکوالې صفت دا دی چې ډیر مطلب او مقصد په لږو الفاظو او لنډو عباراتو کښې څرگند کړي، د الفاظو اوږدول او د عباراتو نوزیاتول په مضمون باندې د نه حاکمیت نښه ده «خَیْرُ الْکَلَامِ مَاقَلَّ وَدَلَّ وَلَمْ یَمِلَّ» ښه کلام چې لنډ وي، په مطلب دلالت وکړي او زړه تنگی تری پیښه نشي یعنې غوره او بهتره وینا هغه ده چې لنډه وي. مطلب تری په ښه شان معلوم شي او لوستونکي ئې په ویلو ستړی نشي.

۳۱ - د عطف توری ډیر لږ باید استعمال شي تر ډیره حده پورې په معنوي تړون او ارتباط باندې بسیا کیدل پکار دي.

۳۲ - لیک باید داسي ولیکل شي چې داولس اوخلکو په محاوره برابر، دمتلونو او اصطلاحکانو په کانه ښایسته وي او په ساده او روان عبارت ولیکل شي ځکه چې پښتانه ډیر تکلف نه خوښوي، نویولیکوال باید چې په خپل لیک او ویناکښې دخپلې ژبې د محاورې او رنګ څخه ځان لرې نه کړي اودنورو ژبو په چوکاټ کښې ځان وانچوي پخوا به خلکو په لوی لاس ګران لغتونه کښل مګراوس ګرانه او سخته لیکنه عیب او کمزوري ده.

۳۳ - د نویو لیکوالو د پاره تر ډیره وخته پورې د یو استاذ لارښوونه او بیا د مضمون لیدنه کتنه او سمونه هم ډیره لازمي ده ولې چې بې د استاذ د لارښوونې څخه څوک هیڅ ځای ته نشي رسیدای.

۳۴ - د مضمون دوهم وار کتنه هم د مضمون د سمون او ښه والي سره زیات کومک کوي او ښائي چې نوي لیکوالان د دې کار سره ځانونه اشنا کړي.

که څوک یو مضمون ولیکي بیا یې یوه هفته یا یوه میاشت په خپل حال همداغسې پریږدي او وروسته د یوې هفتې یا میاشتې څخه یې دوهم ځل وګوري نو زیاتې غلطۍ او کمزورۍ ترې وځي او یو چاڼ کړي سپیڅلی مضمون ترې جوړیږي.

۳۵ - په پښتو لیکوالي کښې د لغاتو د ډیروالي او د ژبې د ارتوالي خیال

ساتل پکار دی، یعنی ورووروو د پخوانیو ژړوادبی لغاتو، واجول که څه
هم په محاوره کښی نه وی د ژبی دادبی پراختیا د پاره یوستر خدمت
گڼل کیږی مثلاً : « لرغونی »، چی یوه ادبی کلمه ده او په محاوره کښی
نشته مگر په لیکلو کښی اوس دیره راځی.
په آخر کښی وایم چی ښه لیکنه او سمه لیکنه په تیره د پښتو نثر
خوږه لیکنه هغه ده چی صفا، څرگنده، ساده، روانه، لنډه سپیڅلی
، سوچه، معقوله په دلیل برابره او درنه وی داکار ډیر زیار، زحمت
، کړاو، پلټنه، معلومات، لاړښودنه او زیاته پاملرنه غواړی. دا کار په
سرسری ډول یا هسی په ټوکو ټکالو نه کیږی په دی باره کښی ښه
فیصله حمید بابا کړی ده.

خو دوینو دریاب مرجونهانشی
مشرف به ددی درپه رنهانشی

# I دلیک معنوی ډولونه :

• دمعنی او موضوعاتو په لحاظ د لیکنی قسمونه او ډولونه ډیر دی
چی مونږ یی دلته په لنډ ډول بیانوو.
تاریخی :- په تاریخی لیکنه کښی د تیری زمانی دپیښو،

واقعاتو او دهغو د سببونو او علتونو څېړنه کيږي . تاريخي ليکنه دهغه چا کار دی چې د تاريخ په علم کښې پوره معلومات ولري او په تاريخ کښې ديو ژور او پلټونکي نظر خاوند وي . تاريخ يو روايت دی مګر له روايت سره درايت مګر له روايت سره درايت ملګري ګول سپاء دغه فن کښې د پوهې او مهارت لويه نښه ده .

په تاريخي ليکنه کښې باوري سندونه غونډول ډير ارزښت لري ، دغه شان ښائي چې د تاريخ پوهان په يوه موضوع کښې مخالفې او موافقې نظريې دواړه راغونډې کړي او بيا د هغو ترمنځ يو پوخ قضاوت او دريمګړتوب وکړي . پکار دی چې دا قضاوت د منطق ، تاريخ ، او فلسفې په بنياد ولاړ وي .

مذهبي : - مذهبي ليکنې د ديني احساس له کبله منځ ته راځي . په دې ليکنه کښې د مذهبي او ديني علومو پوره پوهه لازمه ده ځکه چې په علمي ډول په مذهبي چارو کښې برخه ونلري دهغه مذهبي ليکنې به پخې او سمې نه وي تصوفي ليکنې هم په دې برخه کښې راتلای شي . مګر په تصوفي ليکنو کښې د تصوف له ټولو پړاونو څخه خبريدل او پخپله دهغو عملي کول اساسي شرط دی ، ځکه چې عملاً د صوفيانو په ولکه کښې داخل نشي هغه د تصوف په دنيا کښې قوي او پخه ليکنه نشي کولای .

عشقي : دا ډول ليکنې د مينې او محبت له اوره پيدا کيږي. په دې ليکنه کښې د احساساتو او جذباتو څپې غورځنګونه وهي. د لته هم که سړی په خپله د مينې او سوز خاوند نه وي نو د عشق اغيزناکه ليکنه نشي کولای.

ادبي :- هغه رنګينې شاعرانه ليکنې دي چې يو خوندور خيال پکښې په خوږ وتللوا و سپيڅلو الفاظو کښې څرګند شي، ادبي ليکنې د ادبي ذوق جګ خيال او ادبي قوت په زور ليکل کيږي.

په ادبي ليکنه کښې کله کله يو عالي هدف په ډيرو پردو کښې نغښتی وي، ادبي ليکنه د ذوق او شوق د خوږو بولو يوه ښکلې وسيله ده په ادبي ليکنه کښې د پټو جذبو تفسير او د ښکاره رنګين تصوير څرګند ونه دواړه کيداې شي.

د ظاهري منظرو، ننداره، و رسم کول او ښودل هم په ادبي برخه کښې حسابيږي.

علمي :- علمي ليکنې د پوهې او علم په قوت سرته رسيدلې شي. هره هغه علمي ليکنه ځانله علمي اصطلاحات لري او ښايې چې د خپلو اصطلاحاتو په چوکاټ کښې د ننه وليکل شي.

په علمي ليکنو کښې رياضي، هندسه، کيمياوداسې نورې شامليږي

په علمي ليکنو کښي د الفاظو ګڼلني ته هيڅ ضرورت نشته بلکه په
بښه عبارت د مطلب څرګندول پکښي لوی صفت دی .

سياسي : په سياسي ليکنو کښي د سياست د علم پوهنه
ضروره ده دا ليکنه د هرچا کار نه دی ، يوازي هغه کسان د دی ليکني
حق لري چي د ژور فکر پوره بصيرت او تجربي خاوند وي .

اخلاقي :- اخلاقي ليکنه د ټولني په اخلاقو ، کډ ژواک ، خپل منځي
ژوندون او نورو شيانو غږيږي . په دی ليکنو کښي د اخلاقو په
ګانه ځان ښايسته کول ضرور دی .

قصصي :- دا ډول ليکني په هره ژبه کښي زياته برخه لري په
دی کښي اوږدی قصي او لنډی قصي دواړه شاملي دی . ناولونه ،
ناول ګوټي هم پکښي راځي .

د قصو او ناولونو ليکل ډير اد بي قوت غواړي په قصه کښي تر
پايه يوری يوه موضوع خيړل کيږی مګر په ناول کښي نور يارښونه (برخي)
هم را تلای شي .

ډرامه :- ډرامه هم د يوی قصي شکل لري مګر د تمثيل
او عملي کيدو خوا پکښي زياته ده يعني يوه قصه پکښي په عملي
صورت ښودل کيږی .

انتقادي :- په دې ليکنه کښې د ټولنې بد و رواجونو، ناوړه خويونو او عادتونو ته ګوته نيول کيږي او د سمون او اصلاح په غرض وړاندې اعتراضونه کيږي، په دې قسم ليکنه کښې پوهه، علم، بې غرضي او پاک نيتي شرط ده.

ستاينې او غندنې : په دې راز ليکنو کښې ښه او بد احساسات څرګنديږي او هميشه د خاصو جذبو په اثر کښې ليکل کيږي په دغسې ليکنو کښې اندازه ساتل لوي صفت او زياتې کول لوي عيب دې.

ظرافت :- د ساعت تيرې او خوش طبعي ليکنې دي. د دې راز ليکنو عبارت څه قدر عاميانه او خندونکې وي.

وير ليکونه :- د غم او ناورين په وخت کښې ليکل کيږي په دې کښې د غم او ماتم شه رسم کول پوره کمال دی.

دَوتَرې ليکونه (دفترې ليکونه) : د رسمي چارو د چلولو د پاره ليکل کيږي په دې کښې خپل منځي ليکونه، د حساب کتاب معاملې، اداري چارې او نور شامليږي.

په دې ليکونو کښې لنډيز، سادګي او اساني لوی صفت او اوږدوالي، ګراني او سختي غټ عيب دي.

د غه ټول ډولونه او قسمونه بيا هر يو ځانله د ليکنو شرطونه

اولاری لری چی د هغو بیا نول ډیر وخت غواړی او مونږ په دی لنډه یادونه کښی ورځنی تیریږو.

یادونه:

د لیک نښو نښانو (تنقیط او علامه گذاری) په باب د دری د مجموعی په پنځم فصل کښی پوره معلومات ورکړل شوی دی د نو موړی فصل لومړی برخه دی ولوستل شی.

د ځکه چی په دری او پښتو کی د نښو استعمال یوبل ته ورته دی تر ډیره ځایه مو د لیک نښو او لیک دود په باره کښی معلومات ورکړل او س غواړو چی د ژبی دود په هکله هم یوڅه ووایو ځکه چی دا هم د ژبی په زده کړه کښی یو مهمه او غوره برخه ده.

# شپږم فصل

# ژب دود

## I ـ د پښتو الفبا:

د پښتو ژبې الفبې غږونه او توري ديرش او په دې ډول دي :

ا ، ب ، پ ، ت ، ټ ، ج ، چ ، څ ، ځ ، خ ، د ، ډ ، ر ، ړ ، ز ، ژ ، ږ ، س
ش ، ښ ، غ ، ك ، ګ ، ل ، م ، ن ، ڼ ، و ، ه ، ی .

په دغو تورو کښې (۲۲) توري د پښتو او فارسي ترمنځ شريك دي او نور
اته يوازې په پښتو کښې راځي او په فارسي کښې نه راځي او هغه دادي :

ټ ، ډ ، ړ ، څ ، ځ ، ږ ، ښ ، ڼ .

د پښتو په ديرش تورو کښې (۲۶) توري چوپ (اصلي) توري دي
او څلور کومکي توري يا غږيز توري دي ، د پښتو غږيز توري دادي :
« ا ، و ، ه ، ی » په پښتو کښې د عربي ژبې د غه لس توري هم په مستعار
ډول په عربي کلمو کې استعماليږي . ( ث ، ح ، ذ ، ص ، ض ، ط ، ظ ، ع ،
ف ، ق ) .

مګر پښتو په کلموکښې دغه توری نه راځي او که په کومه کلمه کښې راشي نوهغه به اصلاً پښتونه وی .

## II ـ کومکي غږ ونه :

کومکي غږ ونه په پښتوکښې پر دوه ډوله دی :
یو ډول یې خوځندی (حرکتونه) اوبل ډول یې توری دی .
مونږ ټول اصلي توری د دغو غږ ونو په کومک اومرسته وایو، ولې چې اصلي یا چوپ توری یې دکومکي غږ ونوله مرستې نه ویل کیږی ، په پښتوکښې دغه وروسته خوځندی موجود دی .

الف :ـ زورلکه : ور، غر، غږ .

ب :ـ زورکی لکه : شل، وچ ، میچ .

ج :ـ زیر : داخوځندی او ں د پښتو کلمو په سرکښې نه راځي او په دخیلو کلموکښې استعمالیږی لکه : کُلِ ، بِل، عالِم .

د :ـ پیښ : داخوځندی هم دفارسي اوعربي په دخیلو کلموکښې راځي ـ لکه : مُل ، تجاهُل .

په پښتوکښې کله کله په یونیم حرکت باندی د آواز، زیات فشاراوزور راځي چې هغه ته ټَنج (اکسنت) وایي .

دخج په راتلو دیوی کلمی معنی دبلی شخه توپیر پیدا کوی لکه : غوټه که د آواز زور په اوله څپه یعنی (غ) راشي د «ګره» معنی ورکوی او که په «ټ» راشي نور (غوټی) معنی لری .

ه ـ غږوندی (سکون) په پښتوکښي د غه ورسته قاعدی لری :

۱ : په پښتوکښي په ساکن توری باندی پیل کول روادی او د نیم حرکت په ډول ویل کیږی لکه : سپوږمی ، لمر ، پسرلی ، پښه .

۲ : په پښتوکښي تر دری ساکنو پوری هم یوځای راتلای شي مګر په دی شرط چي لومړی ساکن ئې یو کومکی توری وی لکه : میاشت ، شلویښت پنځوس او داسی نور .

## III ـ کومکی توری :

په پښتوکښي کومکی توری څلور دی ، مګر هغه وخت کومکی توری ګڼل کیږی چي ساکن وی او د مخه تری بل کومکی توری نه وی ، دغه توری په ورو سته ډول دی :

الف : د کلمی په منځ او آخرکښي راځی لکه : کال ، لار ، اکا ، انا .

و : واو په پښتوکښي په څلور ډوله دی :

۱ ـ نرم واو : ـ چه پوست او نرم ویل کیږی او د مخه توری ئې زور

لري.لکه: پلو، لو، کنډو.

۲ - څرګند واو :- چې د مخه توری يې څرګند او درروند پيښ لري لکه: کچالو، چاکو، تالو.

۳ - اوږد واو :- چې اوږد د نرم ويل کيږي او د مخه توری ئې اوږد پيښ لري. لکه: پښتو، زانګو، پيښو، اور، کور، خور، مور.

۴ - کوچنی واو :- چې د مخه يې سپک لنډ پيښ وي. لکه: لومړی، تاسو، وشو، پوښتنه.

ی : یا په پښتوکښې پر پنځه ډوله ده :

۱ - نرمه (ی) چې پسته ويل کيږي او د مخه توری يې زورلري، لکه: سړی، منګی، اوری، مني، ژمی ...

۲ - څرګنده (ي) چې د مخه توری يې درروند او څرګند زيرلري لکه: دوستي، ښادي، شين، خير.

۳ - زورکې واله (ی)، چې د مخه توری يې زورکی ولري او يوازې د کلمې په پای کښې راځي. لکه: هګۍ، خولۍ، چوکۍ، کرکۍ او په مؤنثو کلموکښې راځي.

۴ - اوږده (ي)، چې اوږده ويل کيږي او د مخه توری يې اوږد زير لري لکه: مني، شودې، کوټې، پښې ...

۵- کوچنی «ی»: چې د مخه یې سپک لنډ زیروی. لکه: باندی، پاتی.

ه: په پښتوکښی پر دوه ډوله ده:

۱- ښکاره اولویه (ه) چې د مخه توری یې زورلری. لکه: پیاله چوغکه، کوټه، شونډه.

۲- پټه اوکوچنی «ه» چې د مخه توری یې زورکی لری. لکه: پسه، نیکه، اوږه، زړه.

## IV- د کلمی قسمونه یاد کلام توکی:

کلمه:- هغه لفظ چې دیوی معنی او مقصد د پاره له خولی ځخه وځی کلمه بلل کیږی. په بل عبارت کلمه یو معنی دار لفظ ته وائی.

مونږ دیو مقصد د پوره ښکاره ولو د پاره اړیو چې څو کلمی سره یو ځای کړو د کلمو دیو ځای کولو ځخه کلام او جمله جوړیږی.

په پښتوکښی د کلمی قسمونه یاد کلام توکی په وروسته ډول دی:

۱- نوم:- چې د یوه شی یا دیوه کیفیت او حالت نوم وی، لکه:
لمړځوی، ورور، چرګ، ویره، پوهه، فکر.

۲- ضمیر:- چې د اختصار او لنډیز په غرض د نوم پرځای

ویل کیږي لکه : زه ، ته ، دی ، دا .

۳ ـ صفت :- هغه کلمه ده چي دیو نوم ، حالت او ځرنګوالی بیانوی لکه : تور ، ټول ، لیږ ، ډیر ، خوږ ، سوړ ، موړ ....

۴ ـ فعل :- هغه کلمي ته وائي چي په یوه زمانه کښي پر یو کار او عمل - باندی دلالت کوی لکه : ځم ، کښنیم ، واخست ، وخوړ ، وبه وایم ، وبه ښنبم .

۵ ـ قید :- هغه کلمي ته وائي چي د فعل یا صفت دپاره د قید او تمیز په ډول استعمالیږی لکه : ژر ژر ، ورو ورو ، نن ، پرون .

۶ ـ ادات یا توری :- هغه چي خپلو اکه معنی نلری او د فعلونو او نومونو سره دیوی معنی دپاره استعمالیږی ادات یا توری بلل کیږی . لکه :
له ، د ، ته ، سر ، تر ، په ، کښي ، او نور .

# نوم

نوم هغه کلمه ده چي دیو کیفیت او حالت نوم وي . لکه : لمر ، ورور ، فکر ونه او نور .

## الف ) د مفهوم له مخي د نوم ډولونه :

نوم د مفهوم او معنی له مخي پر پنځه ډوله دی :

۱ـ خاص نوم :ـ چې یو خاص سړی یا یو خاص شی معرفي کوي. لکه:
احمدشاه بابا، رحمن بابا، کابل، افغانستان.
۲ـ عام نوم :ـ هغه دی چې یو خاص سړی یا شي تري مراد نه وي، بلکه پر خپلو افرادو یو شان دلالت کوي. لکه: سړی، لرګی، پانه، غوښه، هنداره
د ظرف نوم، د تصغیر نوم، د آلې نوم د اټول د عام نوم قسمونه دي لکه: نندارتون، کوډکۍ، چغهار، مچ شړونی.
۳ـ د جنس نوم :ـ هغه دی چې په لږ او ډیرو باندې یو شان دلالت کوي لکه: اوبه، غوړي، غنم، تیل.
۴ـ د جمعیت نوم :ـ هغه دی چې په لفظ کښې مفرد او په معنیٰ کښې د یوې ډلې او جمعیت د پاره راځي لکه: لښکر، جرګه، رمه.
د جمعیت نوم د ډیرو ډلو په لحاظ جمع کیږي. لکه: جرګې، رمې، اولسونه
۵ـ مجرد نوم :ـ هغه دی چې مادي وجود ونلري یعني په سترګو نه لیدل کیږي. لکه: عقل، پوهه، ویره.

## ب) نوم د جوړښت په لحاظ:

۱ـ مرکب نوم :ـ چې له دوو یا زیاتو کلمو څخه جوړ شوی وي. لکه:
شیرپور، کندهار، شیرشاه مینه، بریکوت او نور.

۲ - بسیط نوم :- چه یوه مفرده کلمه وی او نور توکی ونلري.
لکه : کټ ، اور ، لاس ، سر ، زړه . مرکب نوم ونه کله په لنډ او مخفف صورت هم راځي. لکه : ترله = د تره لور ، ترورزی = د ترور زوی.

## ج ) مذکر او مؤنث نوم :

ټول نومونه په پښتو ژبه کښې د کیفیت او جنسیت له مخه پر دوه ډوله دي او په نرینه او ښځینه ویشل کیږي ، د غه دواړه قسمه ځنې نښې لري چې په ورو سته ډول ښودل کیږي :

د نرینه نوم نښي ، کوم نومونه او صفتونه چې په پای کښې یې د غه وروسته علامې راشي مذکر ( نرینه ) نوم ګڼل کیږي .

۱ - نرمه « ی » ، لکه : لرګی ، منګی ، سړی ، نوی ، وږی ، تږی .
۲ - څرګند « و » ، لکه : تالو ، بانو ، چاکو .
۳ - کوچنی « ه » ، لکه : تره ، وراره ، زړه ، نیکه .
۴ - نرم « و » ، لکه : پلو ، لو ، کنډو .
۵ - هغه ټول نومونه چې په آخر کښې یې اصلي توري راغلي وي او سماعي مؤنث نه وي مذکر ګڼل کیږي . لکه : میز ، لاس ، اور ، غل ، مل.
یادونه : هغه ساکنه « ی » چه د مخه یې ساکن « و » او یا الف

وی د اصلي توري حکم لري.لکه : څوی ، سوی ،لوی ، ځای ، چای .

دمؤنث نوم نښې :- هغه نوم چې په پای کښې دغه وروسته نښې راغلې وي مؤنث ( ښځینه ) نوم کڼل کیږي .

۱ - څرګنده « ه »: لکه : اسپه ، لښته ، پښه ، پوښتنه، توره.

۲ - زورکي واله « ی»، لکه: خولی، دودی، څپلی، څوکی، نجلی.

۳ - الف : لکه : ژړا ، خندا ، نڅا ، ملا ، شا ، ښوروا .

مګر الف د بې سا نومونو په اخرکښې د مؤنث علامه کڼل کیږي .

۴ - اوږد « و »: لکه : ښارو ، زانګو ، لامبو .

۵ - څرګنده « ی »، لکه : بیاتي ، دوستي ، ښادي ، وروری ، خوږې، خپلوي، مګر په نسبتي صفتونوکښې څرګنده « ي » د مذکرلپاره راځي. لکه : دوبي ، موچي .

۶ - اوږده « ې»، لکه : ادې، ناوې ، ملګرې ، تیږې .

## د ) د مؤنث نوم قسمونه :

مؤنث په پښتو کښې پرڅلور ډوله ویشل کیږي :

۱ - حقیقي لفظي « ساکښ ، نښه وال »، هغه دي چې دیوساکښ او زیروح نوم وي او د تأنیث نښه هم پکښې وي.لکه : غوا ، چرګه ، اسپه .

۲ - حقیقي غیر لفظي «ساکښ، بې نښې» چې دیو ساکښ نوم وي او د تأنیث نښه ونلري. لکه: مور، خور، ترور، نږور، یور، دې قسم ته معنوي مؤنث هم وائي.

۳ - غیر حقیقي لفظي «بې ساء نښه وال» هغه ته وائي چې د بې ساشیانو نوم وي او د تأنیث علامه پکښې وي. لکه: لښته، پانه، غرمه، کاچوغه څوکه، دنیا، پښتو.

۴ - غیر حقیقي غیر لفظي «بې ساء بې نښې» هغه ته وائي چې دیوه بې ساشي نوم وي او تأنیث نښه هم پکښې نه وي. لکه: لمن، ستن، بړستن میچن، ځنځل، منګول، بړ منځ، وریځ، میاشت، لار، لویشت، غېږ، دې قسم ته سماعي مؤنث هم ویل کیږي.

دغه قسم مؤنث نومونه ټول په اصل کښې څرګنده «ه» لري. لکه: لمنه، ستنه تر آخره مګر د «ه» غورځېدل پکښې سماعي دي یعنې په محاوره او اورېدو پورې اړه لري په دې دول نوموکښې اصلي ساکن نون چې د مخه تري زورکې وي، د تأنیث نښه بلل کیږي

## ه) د مؤنث نوم جوړونه:

په پښتو کښې د مؤنث او مذکر د پېژندنې لپاره دوې لارې موجودې

دی. یوه لاره داده چې د مذکر او مؤنث د پاره جلا جلا نوم و نه ایښودل شوي وي او له یو بل سره په لفظ کښې ارتباط نه لري. لکه: پلا، مور لور، زوی، ځلمی، پیغله، هلك، نجلۍ. او بله لاره دا ده چې مؤنث نوم د یوې قاعدې سره سم له مذکر څخه جوړ شوی وي او په لفظ کښې یو تر بله ارتباط لرونکي دي. قسم ته قانوني مؤنث وایي.

د قانوني مؤنث د جوړولو قاعدې په و روسته ډول دي:

۱ـ هغه مذکر نوم چې په آخر کښې یې نرمه «ی» وي، که چیرې په اول او منځ کښې یې د روند خج نه وي د مذکر «ی» په زورکې واله «ې» بدلیږي او که چیرې په اول کښې یې خج راغلی وي نو د آخر «ی» یې په اوږده (ۍ) بدلیږي او مؤنث ځنې جوړیږي.

| اول قسم | | دوهم قسم | |
|---|---|---|---|
| مذکر | مؤنث | مذکر | مؤنث |
| اوسنی | اوسنۍ | ملګری | ملګرې |
| کابلی | کابلۍ | وهلی | وهلې |
| کندهاری | کندهارۍ | وهونکی | وهونکې |
| لیونی | لیونۍ | غلی | غلې |

نمسی نمسی تږی تږې

پردی پردۍ وږی وږې

۲ - هغه نوم او صفت چې په منځ کښې یې ساکن «و» او یا «ی» راغلی وی که جمع لری او په جمع کښې یې د منځ کومکی توری یا په الف بدل شوی او یا غورزیدلی وی په مؤنث کښې یې د منځ کومکی توری غورزیږی او په آخر کښې یې څرګنده «ه» زیاتیږی لکه:

مذکر: سور - زوړ - موړ - کوږ - پوخ.

مونث: سره - زړه - مړه - کږه - پخه.

۳ - هغه نومونه او صفتونه چې په آخر کښې یې اصلی توری راغلی وی یوازی د څرګندی «ه» په زیاتولو مؤنث کیږی لکه:

مذکر: چرګ - زرګ - ږږور - لیکوال.

مؤنث: چرګه - زرګه - ږږوره - لیکواله.

یادګیرنه: ټول صفات چې جمع نلری او یا په جمع کښې د منځ کومکی توری په الف نه بدلیږی د دغه قانون لاندی راځی یعنی یوازی په پای کښې یې څرګنده «ه» زیاتیږی لکه:

مذکر: تور - ټول - غټ - اوم - اوږد -

مؤنث: توره - ټوله - غټه - اومه - اوږده

۴ - په پښتو کښې ځنې شریك صفات هم شته چه د مذکرا و مؤنث لپاره یو شان راځي او غالباً په آخر کښې يې کومکی توري موجود وي لکه: ښکاره، خپه، اشنا، داده، پوازي، نژدې.

## و) مفرد او جمع نوم:

نوم د شمیر او کمیت له مخې پر دوه ډوله دی، مفرد او جمع.
مفرد هغه دی چې په یوه شي یا یوه کس باندې دلالت کوي. لکه: هلك، ونه، لرګی او جمع نو هغه ده چې له یوه نه پر زیاتو شیانو او کسانو دلالت کوي لکه: هلکان، ونې، لرګي.

په پښتو کې تولی جمعي له مفرد څخه د ځینو علامو په راوړلو جوړېږي چې د نارینه جمعو علامې دا دي:

(ی، ه، ګان، او، یان، ان، ونه) او د ښځینه جمعو علامې دادي: «ې، ي، ګانې، وې» د نارینه جمعو علامې په وروسته ډول بیانېږي:

۱ - هر مفرد نوم او صفت چې په پای کښې يې نرمه «ی» راغلې وي په جمع کښې د غه «ی» په څرګنده «ي» بدلېږي.

| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
|---|---|---|---|
| ستوری | ستوري | پلی | پلي |
| نوی | نوي | اغزی | اغزي |
| لوښی | لوښي | لرګی | لرګي |
| پرونی | پروني | | |

یادونه:- په دی قسم نوموتوکښی ساکښ نومونه یا صفتونه او نسبتی ساکښ صفتونه د مفرد په آخر کښی د «آن» په راوړلو هم جمع کیږی لکه:

مفرد: میړی - خوږی - ښاپیری - کابلی - سدوزی - کندهاری .

جمع: میړیان - خوږیان - ښاپیریان - کابلیان - سدوزیان - کندهاریان .

۲- هر نوم او صفت چی په آخر کښی یې څرګند اصلی «و» یا الف یا څرګنده اصلی « ه » راغلی وی د «ګان» په راوړلو جمع کیږی لکه:

مفرد: تالو - چاکو - بابا - ماما - ساده - پیاده -

جمع: تالوګان - چاکوګان - باباګان - ماماګان - سادګان - پیادګان.

یادونه:- د واو په نوموتوکښی ځینی په «ان» او الف په نوموتوکښی ځینی په (یان) هم جمع کیږی لکه:

مفرد:- میرزا - اشنا - ملا - کدو - پشو - کندو...

جمع: میرزایان - اشنایان - ملایان - کدوان - پشوان - کندوان

۳ - ساکښ صفات چې په آخر کښې یې ښکاره «ي» یا ښکاره «و» راغلی وی د «ان» په راوړلو جمع کېږی. لکه:

مفرد: موچي - دوبي - لاپو -

جمع: موچیان - دوبیان - لاپوان -

۴ - هر صفت چې په منځ کښې یې «و» یا «ی» راغلی وی او دغه (و) او (ی) په مؤنث کښې غورځېدلی وی نو په جمع کښې هغه په الف بدلېږی او په پای کښې یې کوچنی «ه» زیاتېږی. لکه:

مفرد: پښتون - شپون - تریخ - تریو.

جمع: پښتانه - شپانه - تراخه - تراوه.

۵ - ځنې دوه توریزاو یو څپه یز صفات د کوچنی (ه) په زیاتولو جمع کېږی. لکه:

مفرد: غل - مل - مړ - سور - شین - اوم - اوږد.

جمع: غله - مله - مړه - سره - شنه - اومه - اورده.

۶ - هغه نومونه او صفتونه چې په آخر کښې یې د الفبا اصلی حرف راغلی وی که ساکښ وی عموماً د (ان) په زیاتولو او که بی ساوی د «ونه» په زیاتولو جمع کېږی. لکه:

مفرد: چرګ - اوښ - کور - پور.

جمع : چرګان - اوښان - کورونه - پورونه .

## ز) ښځینه جمعې :

د ښځینه جمعو د جوړولو قاعدې او علامې په وروسته ډول دي :

۱ - هر مفرد مؤنث نوم چې په آخر کښې یې «و» او یا (الف) وي د (ګانې) په زیاتولو جمع کیږي . لکه :

مفرد : زانګو - پیشو - ژړا - رڼا - غوا .

جمع : زانګوګانې - پیشوګانې - ژړاګانې - رڼاګانې . غواګانې .

یادونه :- ځنې پښتانه د الف نومونه د (وې) په راوړلو جمع کوي لکه : ژړاوې - رڼاوې .

۲ - هر مفرد مؤنث نوم چې په پای کښې یې څرګنده «ي» یا زورکې واله «ې» داغلې وي که ساکښ وي په «ګانې» جمع کیږي او که بې سا وي نو جمع یې په زورکې واله «ې» راځي لکه :

مفرد ساکښ : مامې - انې - بوډۍ .

جمع ساکښ : مامې ګانې - انې ګانې - بوډۍ ګانې

مفرد بې سا : دوستي - وداني .

جمع بې سا : دوستۍ - ودانۍ .

۳ - کوم نوموNه چې په پای کښې يې اوږده «ې» راغلې وي په پوهمنو کښې په (انې) جمع کيږي او په ناپوهمنو او عمومي صفاتو کښې جمع نلري بلکه د مفرد اجمعې لپاره يو شان راځي. لکه:

پوهمن مفرد: ناوې - خوابنې.

پوهمن جمع: ناوياني - خوابنياني.

ناپوهمن مفرد: ورغومې - تلونکې.

ناپوهمن جمع: ورغومې - تلونکې.

۴ - هغه مفرد مؤنث نومونه چې په آخر کښې يې «ه» وي په جمع کښې يې «ه» په «ې» بدليږي. لکه:

مفرد: کته - خته - پاڼه - مالګه - پخه - جرګه.

جمع: کتې - ختې - پاڼې - مالګې - پخې - جرګې.

يادونه: هر کله چې ټول سماعي مؤنثات په اصل کښې «ه» لري نو ځکه يې جمع په آخر کښې داوږدې «ې» په راوړلو راځي. لکه:

مفرد: غيږ - لار - لمن - ځنګل.

جمع: غيږې - لارې - لمنې - ځنګلې.

۵ - د نسبتي او شريکو صفاتو ښځينه جمعې له نارينه جمعو څخه د «ې» په زياتولو جوړيږي. لکه:

دمذکرجمع : دوبیان ـ موچیان ـ ساده ـ اشنایان.
دمؤنث جمع : دوبیاني ـ موچیاني ـ ساده کاني ـ اشنایاني.
٦ ـ دمعنوی مؤنثاتو جمعی دیوی قاعدی لاندی نه راځی او
په وروسته ډول جوړیږی.لکه :
مفرد : مور ـ خور ـ نجلۍ ـ ورینداره ـ ترور .
جمع : میندې ـ خویندې ـ نجوني ـ ورینداري ـ ترندې.

## ح ، دنوم حالتونه :

دنوم حالتونه پردوه ډوله دی معنوی اولفظی اوس دنوم معنوی
حالتونه ښیو. دنوم مشهور معنوی حالتونه څلور دی :
١ـ دنوم فاعلی حالت . ٢ ـ دنوم مفعولی حالت . ٣ ـ دنوم ندائی
حالت . ۴ ـ دنوم ارتباطی حالت .
١ ـ فاعلي حالت :ـ کوم نوم چې په جمله کښې فاعل وی یعنی یوکارله
هغه څخه صادر شي یاور پوری ترلی وی هغه حالت نه فاعلی ـ
حالت وائی .لکه : ځلمی خط لیکي . احمد جهادته ځي .
په دی جملو کښې ځلمی او احمد دواره فاعلي حالت لري .
٢ ـ مفعولی حالت :ـ که چیرې یو نوم په جمله کښی مفعول واقع شی هغه

حالت ته مفعولي حالت وائي . لکه : بریالی دوډۍ خوري. توریالی سبق وايي . په دې جملو کښې دوډۍ او سبق دواړه په مفعولي حالت کښې دي.

۳ ـ ندايي حالت : که یو نوم ته غږ او ندا وکړې شي نو هغه نوم په ندائي حالت کښې دی لکه: ای وروره ! ای هلکه ! ای خورې ! خورکۍ ! تاته وایم. په دې جملو کښې ورور، خور، هلك، خورکۍ ندائي حالت لري .

۴ ـ ارتباطي حالت :- که چیرې یو نوم د ارتباط له اداتو سره استعمال شي او د ارتباط توري یا ورځنې د مخه او یا وروسته راشي نو هغه نوم اتباطي حالت لري لکه : له کوره راغلم، بازار ته ځم، ملالۍ ته قلم ورکه .

په دې مثالو کښې، کور، بازار او ملالۍ ارتباطي حالت لري او د ارتباط توري په کښې (له ، ته ) دي. په پښتو کښې د ارتباط توري دا دي: « په ، پر ، د ، تر ، بې ، نا ، له ، ته ، لره ، نه ، څخه ، ځني ، سره او نور دي » .

که چیرې دوه نومونه د ( د ) په واسطه له یو بل سره ارتباط ـ پیدا کوي نو هغه وخت ورته اضافي ارتباط وائي په اضافي ارتباط کښې لومړی مضاف الیه او وروسته مضاف راځي . لکه :

دځلمي قلم، داخترورځ ، دزروکوته، دلوست کوټه، دسترګو تور دزړه سر، دکندهار انار، دکابل مڼې مشهوري دي .

اوکه مضاف اليه د « مې، دې، يې » ضميرونه وي نوبيا مضاف دمخه راځي لکه : قلم مې راکه، کتاب دې څه شو، زړه يې پريشان دي .

دنوم لفظي حالتونه په لاندې ډول دي :

په پښتو کښې نومونه د آخر د تغير په لحاظ پر څلور ډوله دي چه په وروسته کر ښو کښې ښودل کيږي .

۱ - هغه نوم چې په نرمه (ى) ختم شوى وي په ندايي حالت کښې مفتوح راځي او فتحه يې په ګرده (ه) ليکل کيږي او په فاعلي او ارتباطي حالت کښې د جمعې په شکل اوړي . يعنې نرمه (ى) په څرګنده (ي) بدليږي او په نورو حالاتو کښې په اصلي شکل راځي لکه :

ندايي حالت : فاعلي حالت : ارتباطي حالت : اصلي حالت :

اى ځلميه ! ځلمي خط وليکه . ځلمي ته څه وايې؟ ځلمى يې وڼيو

اى سړيه ! سړي سبق واويه . سړي په کټ کښيناست . سړے يې بوت

۲ - هغه صفت چې په منځ کښې يې (و) وي په ندايي حالت کښې - مفتوح او په فاعلي او ارتباطي حالت کښې د جمع په شکل راځي لکه :

اى پښتونه ! واړه هلك وخندل . بې ننګي د پښتانه مرګ دى .

۳ - کوم نومونه چه په صحیح حرف ختم وی او جمع یې په (ان، ونه) راځي په ندایې حالت کښې مفتوح او په نورو حالاتو کښې په اصلي صورت راځي لکه: ای ځوانه! ای هلکه! ای باده! ای کوره! باد راوالوت. ځوان یې وواهه.

یادونه :- دغه راز د (له، تر، بې، با) سره هم مفتوح راځي لکه: بې فکره سړی دی، ناشکره دی، ترکوره پورې ځم، له کوره راغلم.

۴ - سماعي مؤنث او په (ه) او څرګنده (ي) مختوم مؤنث په ندایې فاعلي ارتباطي دری واړه حالتونو کښې په جمع بدلیږی لکه: ای میرمني! دښمني ډیر کورونه وران کړل، نن د ښادی ورځ ده.

۵ - هغه معنوی مؤنث چه په صحیح حرف ختم وی په ندایې حالت کښې یې په آخر کښې او بږده (ې) زیاتیږی د «له، بې، تر» سره مفتوح او په نورو حالاتو کښې په خپل شکل راځي لکه:

ای مورې! له موره بل څوک خوږ نشته، دا هلك بې موره دی.
دی ترموره ورسوه.

۶ - د جمع او اسم جنس نومونه چې په څرګنده (ي) او اوږده (ې) یا په (ه) ختم وی په ندایې، فاعلي، ارتباطي حالاتو کښې د آخر (ی، ه) په اوږد (و) بدلیږی لکه: ای سړو! میلمنو ډوډۍ وخوړه.

دغوړو قیمت زیات شوی دی.
ای میلمنو! دغوسړو ډیرکار وکړ. بې اوړو کار نه کیږی.
۲ ـ جمع مذکر او اسم جنس چې په صحیح حرف ختم وی په ندايي، فاعلي او ارتباطي حالاتوکښنی يې آخرته کوچنی (و) زیاتیږی.
چې مثالونه يې په ترتیب سره لاندی ذکرشوی دی.لکه:
ای هلکانو! هلکانوسبق ووایه. دغنمونرخ ښکته دی.
یا دو نه:ـ الف: ټول صفات چې جمع نلری که چیری موصوف يې جمع وی نو په دریواړو حالاتوکښنی يې آخرته (و) زیاتیږی.لکه:
ای غمجنو! لږوکسانوکار وکړ. په سپکو سپکه په درنو درنده.
ب: پښتوکښنی مصدر، دجمع مذکرحکم لری او په دغه دریواړو حالاتوکښنی يې په آخرکښنی (و) زیاتیږی.لکه:
ډیرو لیکلو ستړی کړم. دا دخوړلو ښښلو وخت نه دی.
په مینځلو به يې سپین نکړی بابوجانه ـ هرلیمځی چې دوه ځیوا اصل يې تورو ـے

## ط) نه بدلیدونکی نومونه:

په پښتوکښنی ځنی تغیرنه منونکی اسمونه هم شته چه هغه په ټولوحالاتوکښنی په یو صورت استعمالیږی او په پای کښنی يې کوم ـ

تغیراوبدلون نه راځي چې په لاندې ډول ښودل کیږي .

۱- هغه نوم چې په پای کښې یې الف راغلی وي.لکه : ای کاکا !
دادا مې راته یو ښه قلم راوړ . حمید په خندا راغی .

۲- هغه نرینه نوم چې په کوچنی « ه » ختم شوی وي لکه : ای نیکه !
ځلمي ته ډېل نیکه قلم وبا ښه . بې زړه سړی هیڅ نشی کولا ی .

۳- هغه نوم چې په پای کښې یې ځرګند او اوږد « و » وي لکه :
ای ښارو !پیښو غوښه و تښتوله ، زه د پیښتو په ژب دود پوهیږم .

۴- هغه نوم چې په زورکي واله « ئ » مختوم وي لکه : ای نجلئ !
ږلی دونو پامې هم تو یې کړی . رښا پرځوکی ناسته ده .

۵- هغه نوم چې په اوږده « ې » ختم وي لکه : ای ملګرې ! ادې دوډۍ
پخه کړه . تورپیکی له خوابښې سره ولاړه .

۶- هغه نرینه نوم چې په ځرګنده « ي » ختم وي لکه : ای دوبي !
موچي بو ټونه وګنډل . زما جامې د دوبي سره دي .

۷- هغه نرینه نوم چې په ځرګنده « ه » ختم وي لکه : ای پیاده !
میلمه ډوډۍ وخوره . د میلمه واک دکور په په لاس کښې وي .


نوم او د هغه قسمونه د مفهوم له مخې
خاص نوم
لکه
احمد، کابل
عام نوم
لکه
سړی، لرګی
دجنس نوم
لکه
اوبه، غوړی
دجمعیت نوم
لکه
جرګه، لبنکر
مجرد نوم
لکه
عقل، پوهه
دظرف نوم
لکه
نندارتون
دتصغیر نوم
لکه
کوړګی
دصوت نوم
لکه
چغهار
دالې نوم
لکه
مچ شړونی


نوم د جوړښت په لحاظ
مرکب
لکه
شیرپور، شیرشاه مینه
بسیط
لکه
کټ، لاس، سر



دکیفیت او جنسیت په لحاظ د نوم دوه ډولونه
نارینه (مذکر)
د نارینه نوم نښې
۱ - نرمه (ی)
۲ - څرګند (واو)
۳ - کوچنی (ه)
۴ - نرم (واو)
۵ - چه په آخر کښې اصلي توری وي او سماعي مونث نه وي.
مثال
لرګی، منګی
تالو، بانو
فره، وراره
پلو، کندو
میز، لاس
ښځینه (مؤنث)
د ښځینه نوم (نښې)
۱ - څرګنده (ه)
۲ - زورکې واله (ې)
۳ - الف (ا)
۴ - اوږد (و)
۵ - څرګنده (ي)
۶ - اوږده (ۍ)
مثال
اسپه، لښته
خولې، څوکې
ژړا، خندا
ښارو، زانګو
بیاتي، ښادي
ادۍ، ناوۍ



دمؤنث قسمونه
حقیقي لفظي
لکه
غوا
چرګه
اسپه
حقیقي غیرلفظي
لکه
خور
مور
ترور
غیرحقیقي لفظي
لکه
لښته
پاڼه
غرمه
غیرحقیقي غیرلفظي
لکه
لمن
سترن
برسترن

# ضمیرونه

ضمیر هغه کلمه ده چې د نوم پر ځای د تکرار د لرې کولو د پاره راځي .

ضمیرونه په پښتو کښې په څو ډوله دي او مشهور قسمونه یې په لاندې ډول ښودل کیږي .

شخصي ضمیرونه ، اشاري ضمیرونه ، استفهامي ضمیرونه مبهم ضمیرونه ، ربطي ضمیرونه .

الف :- شخصي ضمیرونه :- هغه دي چې پر یوه معین شخص یعنې په متکلم ، مخاطب او غایب باندې دلالت کوي . شخصي ضمیرونه د استعمال له مخې په دوه ډوله دي :

— پیوست « متصل ضمیرونه » :- هغه دي چې یواځې نه راځي او تل د فعل سره پیوست استعمالیږي ټول متصل ضمیرونه دا دي :

م : د مفرد متکلم لپاره . لکه : په ( ځم ) کښې .

و : د جمع متکلم د پاره . لکه : په ( ځو ) کښې .

ې : د مفرد مخاطب لپاره . لکه : په ( ځې ) کښې .

ئ « است » : د جمع مخاطب د پاره . لکه : په ( راغلئ ) او ( راغلاست ) کښې .

ی - ه : مفرد مذکر غایب د پاره . لکه : ځلمی تللی دی . ځلمی په باغ کښې ګرځیده .

ل ـ د جمع مذکر غایب د پاره.لکه: هلکان را غلل.

هـ ـ د مفرد مؤنث غایب د پاره.لکه: ملالی له خوبه پاڅیده.

ی ـ د جمع مونث غایب د پاره.لکه: نجونی پوهنځی ته ولاړی.

څرګنده «ي» ـ په حال او مستقبل کښی د مفرد، جمع، مذکر او مؤنث د پاره.لکه: ځلمی سهار وختی له خوبه پاڅي. ملالی چای څښي. هلکان سبق وایي. نجونی خط لیکي.

د غه متصل ضمیرونه همیشه د افعالو سره پیوست راځی نو ځکه فعلی ضمیرونه هم ورته وائی.

د غه متصل ضمیرونه دوه حالته لری، فاعلی او مفعولی.

په لازمی فعلونو کښی د فاعل په حیث او په متعدّی فعلونو کښی د مفعول په حیث راځی مګر په استعمال کښی منفصل ضمیرونه هم ورسره راتلای شی.

## فاعلی حالت

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| متکلم ـ زه کرځم. | مونږ کرځو. |
| مخاطب ـ ته کرځې. | تاسی کرځئ. |
| مذکر غایب ـ دی کرځی. | دوی کرځیدل. |

مؤنث غايب ـ دا کرځيده.          دوی کرځيد لی .

## مفعولی حالت

| جمع | مفرد |
|---|---|
| ځلمی مونږ وپېژندلو . | متکلم ـ ځلمې زه وپېژندلم . |
| ځلمی تاسو وپېژندلې . | مخاطب ـ ځلمې ته وپېژندلې . |
| مادوی ولیدل . | مذکر غایب ـ مادی ولیده . |
| مادوی ولیدلی . | مؤنث غایب ـ ماداولیدله . |

يادونه : متصل ضميرونه یوازی په ماضی فعلونوکښی ـ مفعولی حالت لری اوپه حال او استقبال کښې تل دفاعل په حيث راځی .

ـ ناپيوست «منفصل» ضميرونه هغه دی چې له بلې کلمې سره پيوست نه راځی بلکه ځانله اوجلا ليکل کيږی چه پردوه ډوله دی یو قسم مستقل «خپلواک» او بل قسم يې غير مستقل «ناخپلواک» دی .
مستقل منفصل ضميرونه په لاندی ډول ښودل کيږی :

زه ، ما ـ دمفرد متکلم دپاره .

مونږ ـ دجمع متکلم دپاره .

ته ، تا ـ د مفرد مخاطب د پاره .

تاسي ـ د جمع مخاطب د پاره .

دي، ده ، د مفرد مذكر غايب د پاره . د نژدی غايب د پاره يعنی د دريم سړي د پاره که څه هم حاضر وي .

دا ، دي ـ د مفرد مؤنث غايب د پاره .

دوي ـ د جمع غايب د پاره .

هغه ـ د غه په زوږ ، هغه د (ع) په زور کی ـ د مفرد مذكر غايب د پاره.

هغه ـ ـ د مفرد مؤنث غايب د پاره . د ليری غايب د پاره .

هغوي ـ د جمع غايب د پاره .

د غه ضميرونه د استعمال له مخه بيل بيل حالتونه لري چي په وروسته د ول بيانيږي :

۱ـ په د غو ضميرونو کښي « ده » « دي » « هغه » « هغې » خالي يو فاعلي حالت لري يعنی يوازی د متعدی ماضی د فاعل په حيث استعماليږي او په نورو حالتو کښي نه راځي لکه .

| مؤنث | مذکر |
|---|---|
| دې خټکی وخوړ . | ده خټکی وخوړ . |
| هغې خټکی وخوړ . | هغه خټکی وخوړ . |

۲ - (ما، تا) دا دوه ضميرونه په متعدي ماضي کښي دفاعل په حيث او په حال، مستقبل او امرکښي دمفعول په حيث راځي لکه:

| فاعلي | مفعولي |
| --- | --- |
| ما خط وليکه . | تور يالي ما ويني . |
| تا خط وليکه . | احمد تا ويني . |

۳ - (زه، ته) دا دوه ضميرونه هم فاعلي حالت لري هم مفعولي، په متعدي ماضي کښي دمفعول په حيث او په لازمي افعالو او متعدي حال او استقبال کښي دفاعل په حيث استعماليږي لکه:

| مفعولي حالت | فاعلي حالت |
| --- | --- |
| زه ځلمي وليد لم . | زه ځلمي وينم، زه ځم . |
| ته ځلمي وليدلې . | ته احمد ويني . ته ځې . |
| | زه به خط وليکم . زه تللی وم . |
| | ته به خط وليکې . ته تللی وې . |

۴ - (دی، دا، هغه) دا ضميرونه هم دوه حالته لري فاعلي او مفعولي مګر فاعلي حالت يې په متعدي افعالو کښي په حال او مستقبل پوري خاص دی او مفعولي حالت يې کوم اختصاص نه لري په ماضي او حال دواړو کښي راځي لکه:

| فاعلي | مفعولي |
| --- | --- |
| دی خط لیکي، دی به خط ولیکي . | مادی ولید، زه دی بیا یم . |
| هغه خط لیکي . | ما هغه ولید، زه به هغه راولم . |
| دا خط لیکي . | مادا ولیده، زه به دارا ولم . |

۵ - (مونږ، تاسی، دوی، هغوی) دغه څلور دجمع ضمیرونه داستعمال له مخه هیڅ اختصاص نه لري په ماضي او حال کښي هم دفاعل په حیث استعما لیږي او هم د مفعول په حیث لکه :

| فاعلي | مفعولي |
| --- | --- |
| مونږ سبق ووایه . | احمد مونږ ولید لو . |
| تاسی څه کوی ؟ | محمود تاسی ولیدلئ . |
| مونږ خط لیکو . | احمد دوی ولیدل . |
| دوی به زما کتاب راوړي . | محمو مونږ ویني او تاسی نه ویني . |
| دوی چیری ولاړل ؟ | |
| هغوی مکتب ته ولاړل . | |

۶ - په پورته ضمیر ونو کښي یوازی (زه، ته، دی، دا، هغه) - ارتباطي حالت نه لري او نور ټول ضمیرونه د ښکاره توم په شان ارتباطي حالت لري او د ارتباط له توروسره استعمالیږي لکه :

ما ـ ماته څه وائې ؟ مونږ : مونږ ته خپل وطن ګران دے .
تا ـ له تاسره مې کار دی . تاسې : تاسې ته خبره کوم .
ده ـ ده ته څه مه وايه . دوی : پر دوی باندې کار دېر دی .
دې ـ ددې کورچيری دی ؟ هغوی : هغوی ته مې کتابونه ورکړل .
هغې ـ له هغې نه د اپوهه ده .

## ــ اضافي منفصل ضميرونه :

په پښتو کښې اضافي منفصل ضميرونه په وروسته دول ـ
ښودل کيږي .

زما ـ زمونږ ـ د متکلم دپاره .
ستا ـ ستاسې ـ د مخاطب دپاره
دده ـ ددوی ـ د نږدې مذکر غايب دپاره .
ددې ـ ددوی ـ دنږدې مؤنث غايب دپاره .
دهغه ، دهغوی ـ دلېرې مذکر غايب دپاره .
د هغې ، دهغوی ـ دلېرې مؤنث غايب د پاره .

دغه قول اضافي ضميرونه تل د مضاف څخه د مخه راځي او مثالونه يې
دا دي : زما کور په لوګر کښې دی ـ زمونږ هواد افغانستان نوميږي

ستا فکر بنه دی - ستاسی خیال څنګه دی ؟
د ده لاس خوږیږی . د دې زړه خپه دی . د هغه پلار ژوندی دی .
د هغې مور ژوندۍ ده . د دوی تعلیم زیات دی ، د هغوی فکر پوخ دی .

## ــ ناخپلواك منفصل ضمیرونه :

په پښتو کښی غیر مستقل ضمیرونه هم شته دی چی ځانله شکل لری مګر بی د نورو کلموله راوړلو ځانله نه استعمالیږی دغه ضمیرونه په لاندی ډول دی لکه :

می ، مو ، د متکلم دپاره .
دی ، مو ، د مخاطب دپاره .
یې ، د غایب د پاره .

د استعمال په لحاظ دغه ضمیرونه د افعالو په آخر او منځ او د نورو مونو په آخر کښی راځی مګر د لازمی افعالو او د ارتباط له اداتو سره نه استعمالیږی .

دغه ضمیرونه دری حالته لری : فاعلی ، مفعولی ، اضافی مګر فاعلی حالت یې په ماضی متعدی پوری او مفعولی حالت یې په امر ، حال او مستقبل پوری اړه لری .

مثالونه يې دادي :

| فاعلي حالت | مفعولي حالت |
| --- | --- |
| قلم مې واخیست. | ته مې چیرې بیا یې ؟ |
| قلم مو واخیست . | دی مو چیرې بیا یې ؟ |
| قلم دې واخیست . | زه دې له ځانه سره بیا یم . |
| قلم مو واخیست . | زه مو له ځانه سره بیا یم . |
| قلم یې واخیست . | زه یې کور ته بیا یم . |

اضافي حالت

کتاب مې راکه - کتابونه مو راکه - کتاب دې څه شو ؟ - کتابونه مو څه شول ؟ - کتاب مې ورک شو .

## ب : اشاري ضمیرونه :

په پښتو کښې ځینې اشاري ضمیرونه هم شته دي چه د اشاره په ډول د اشخاصو او شیانو په ځای استعمالیږي په پښتو کښې - اشاري ضمیرونه په دروسته ډول دي :

دغه، دغو - د نژدې مذکر دپاره . هغه، هغو - دلیرې مذکر دپاره .
دغې، دغو - د نژدې مؤنث دپاره - هغې، هغو - دلیرې مؤنث دپاره ؛

په دغه کلموکښې ( دغې ، هغې ) د مفرد مؤنث دپاره او « دغو ، هغو » دجمع مذکراو جمع مؤنث دپاره ، د ماضي متعدي په فاعلي حالت او ارتباطي حالت کښې استعمالیږي او ( دغه ، هغه ) په نورو حالاتوکښې د مؤنث مذکر ، جمع او مفرد دپاره يوشان راځي .

مثالونه يې په ورو ستنه ډول دي :

| فاعلي حالت | ارتباطي حالت | نورحالتونه |
|---|---|---|
| دغې ډوډۍ پخه کړه . | له دغې نه قلم واخله . | دغه راغلې وُ . دغه راغلې وه . |
| هغې کالي وويڅل . | هغې ته کاغذ ورکه . | هغه نه وُ راغلې . هغه نه وه راغلې . |
| دغو لارجوړه کړه . | د دغو کارولي نه کوي ؟ | |
| هغو خپل کاروکړ . | له هغو پو ښتنه وکړه . | |

يادګیرنه :

له اشاري ضميرونو سره که چیري مرجع نه وي ذکرشوي نو اشاري ضميرونه بلل کيږي . لکه په پورته مثالونو کښې ، اوکه چیري مرجع ورسره راغلي وي نوبيا ورته اشاري صفت ويل کيږي لکه : دغې ښځې ډوډۍ پخه کړه . دغو سړو لارجوړه کړه . دغه هلك يوپوه هلك دی .

## ج: استفهامي او ربطي ضميرونه:

استفهامي ضميرونه هغه دي چې د سوال او پوښتنې په وخت کښې استعماليږي او په لاندې ډول بښودل کيږي:

چا، څوک - د اشخاصو د پاره راځي (چا) د ماضي متعدي په فاعلي حالت او ارتباطي کښې او (څوک) په نورو حالاتو کښې استعماليږي. مثالونه يې دادي:

چا سبق ولوست - چا خط وليکه؟ چا ته وايې؟ دا سړى د چا وړور دى؟ څوک راغلي دي؟ څوک غواړې؟ څوک دې ژړوي؟

څه، څومره، څو - دغه درې واړه ضميرونه په دريواړو حالتونو کښې راځي. لکه:

څه وچيچلې؟ تا څه واخستل؟ له څه ويريږې؟

دا قلم دې په څو واخست؟ څومره اخلې؟

(څوم، څومه - کوم - کومه) دغه څلور کلمې

هم استفهامي ضميرونه دي مګر هغه وخت چې موجع ورسره نه وي ذکر شوى. لکه: څووم دې په کار دى؟ څوومه غواړې؟

کوم دې پکار دى؟ کومه غواړې؟

په پښتو کښې یو قسم ربطي ضمیرونه هم شته چې په جملو کښې د ربط وظیفه اجرا کوي او له جملې له دوهمې جملې سره تړي دغه ضمیرونه زیات له دوو توکو څخه جوړ شوي دي مثالونه يې په وروسته ډول دي :

څوک چې ــ څوک چې بد کړي بد به پر زي .

چاچې ــ چاچې کار وکړ ګټه به وموي .

څه چې ــ څه چې کړي هغه به ريبي .

هر څه ــ هر څه چې وايي وايه .

څومره چې ــ څومره چې خوړلی شي وخوره .

د (تري ، ترینه ، څني ، پري ، پکښې) کلمې هم د ربطي ضمیرونو وظیفه اجرا کوي ، مثالونه يې دادي :

تري ، ترینه ــ قلم تري واخله .

څني ــ پوښتنه څني وکړه .

پري ــ زما پري روپۍ دي .

پکښې ــ څلمې پکښې ناست دي .

دغه کلمې په اصل کښې دد ي کلمو (تر ده ، له ده ، په هغه کښې) په ځای په مخفف ډول استعمالیږي .

## د : مبهم ضمیرونه :

په پښتو کښي ځني مبهم ضمیرونه هم شته چي یو نا معلوم شخص یا شي پر ځای استعمالیږي او پر دوه ډوله دي بسیط او مرکب.

بسیط مبهم ضمیرونه دا دي :

څوک : څوک کار کوي او څوک ساعت تیر وي .

چا : چا کار کړي دي او چا نه دي کړي .

څه : څه دا دي او څه نور دي .

څو : څو ي مړه شول او څو ي پاتي دي .

هیڅ : دلته هیڅ نشته .

مرکب مبهم ضمیرونه ډیر او یو څو ي په لاندي ډول دي :

هرڅوک : هرڅوک خپل خپل کار کوي .

هرچا : هرچا پکښي خبري وکړي .

هرڅه : دلته هرڅه پیدا کیږي .

هیڅوک : هیڅوک نه وائي چه زه ناپوه یم .

هیچا : هیچا نه مه وایه .

هریو : هریو وائي چي زه من یم . بل یو : بل یو هم نشته .

# صفت

صفت هغه کلمې ته وایي چې د یو نوم حالت، کیفیت او څرنګوالی معلوموي یا بیانوي.

## الف: د صفت ډولونه:

صفات پر څو ډوله دي او په وروسته ډول ښودل کېږي:

۱- اصلي صفت: چې د یو نوم ذاتي ښه والی او بد والی ښکاره کوي لکه: ښه، بد، تور، سپین، خړ، سور، غټ، لوی، نری، او م پوخ، خپل، پردی، لوڅ، مړ، ژوندی، روغ، جوړ، وږی، تږی، موړ، سوړ، ووړ، زوړ، تیټ، لوړ، جګ، اوچت، ګرندی، پلن، لنډ او بډ، ارت، تنګ، ژوبل، تېږی، پوه، او نور.

۲- نسبتي صفت: چې یو بل نوم ته یې نسبت شوی وي لکه: کندهاری، کورنی، پکتیاوال.

۳- اشاري صفت: هغه کلمې چې د هغو په واسطه یو نوم ته اشاره وشي او هغه ته اختصاص ورکړي اشاري صفت بلل کېږي لکه: دا کورنۍ دې په څو روپۍ کنډلی ده. دغه باغ دانګور ودی. دغه سړی د غنمو لوکوی. دا ونه ښه سیوری لري.

دهغه غره په سر ونې ښکاري . دغه هلکان د زمرک وریروندي.
دغه لرګي وچ او هغه نور لانده دي .
له پورته مثالو څخه معلومه شوه چه په پښتو کښې د اشاري کلمې د نر، ښځې مفرد، جمع، ساکښ او بې ساد پاره یو راز ویل کیږي .
۴ ــ عددي صفت :- هغه کلمې دي چې د هغو په واسطه د یو شي شمیر او اندازه معلومیږي. لکه : دوه لاسونه، دوي سترګې، شپږ میاشتې، پنځمه ورځ او نور .
که چیري یو عدد د یوازي شمیر او اندازه ښېي مطلق عدد یې بولي او که چیري په رتبه او درجه هم دلالت وکړي نو رتبي عدد ورته وایي لکه : دي یو کمیس په شل افغانۍ ګنډي.
نن د میاشتې شپږ ویشتمه ورځ ده .
مطلق عددونه بې دیوا و دوه څخه د مذکر او مؤنث د پاره یو شان راځي او رتبي عددونه د خپل موصوف تابع دي. لکه :
لسم کال، لسمه ورځ .
۵ ــ استفهامي صفتونه :- چې د پوښتنې په وخت کښې استعمالیږي او موصوف ورسره راغلی وي .

لکه : څومره غنم دی په کار دی؟ کوم هلك پوه دی؟

۶ ـ فعلی صفتونه : هغه دی چې د فعل او کولو معنی هم پکښې وی او د نورو صفاتو په شان دیو نوم حال اوشان هم بیانوی.

فعلی صفات پر دوه ډوله دی یو قسم یې فاعلی صفات دی، لکه : پالونکی، تلونکی، تلونی، تللی، راغلی، پاڅیدلی، کړځیدلی.

او بل قسم یې مفعولی صفات دی، لکه : ساتلی، لیکلی، پړکیدونکی وهل کیدونکی او نور.

فعلی صفات له مصدر، څخه د مصدر، ی علامو پر ځای د (ی، ونکی، ونی) په راوړلو جوړیږی د (ی، په واسطه جوړ شوی صفات په تیره زمانه پوری او د «ونکی، ونی» په واسطه جوړ شوی صفات په حال او راتلونکی زمانی پوری اړه لری. نور مثالونه یې دا دی :

تللی وخت په مثال مړی د لحد دی

مړی چا دی ژوندی کړی په ژړا

سل بللی ځائیږی او یونا بللی نه ځائیږی. څوك چې کالی کنډی هغه ته کنډ ونکی وائې.

په پښتو کښې صفت تر موصوف د مخه راځی او دغه ترکیب

ته توصفي ترکیب[1] وائي، صفت په تذکیر، تأنیث، جمع او مفرد کېښې همیشه د موصوف تابع دی او د دواړو په منځ کېښې مطابقت لازم دی.
لکه: خوږه مېوه، خوږ ختکی، خوږې هندوانې، خواږه انګور، زوړ سړی، زاړه سړي، زړه ښځه، زړې ښځې.

صفات د حالاتو په لحاظ هم د موصوف تابع کېږي کوم تغیر چې په موصوف کېښې راځي هغه په صفت کېښې هم راځي لکه:

| فاعلي حالت | مفعولي حالت | ارتباطي حالت |
|---|---|---|
| تور سړي کوټې نړۍ کړم. | دغه وړوکی هلک چاوواهه. | په لویو غرو د خدای نظر دی. |
| د یرو کارونو ستړی کړم. | په سرې پاوري په لمن زېړې ګلونه | |

ندايي حالت: ګرانه وروره ستړی مه شې!

## ب: مجردو صفونه:

مجرد وصف هغه ته وائي چه په خارج کېښې کوم مادي وجود ونلري او خالي وصف او حالت ترې مراد یږي لکه:

لیونتوب، هوښیارتوب، روغتیا، اوږدوالی، دوستي، دښمني او نور.

---

[1] مګر هغه صفات چه یو اختصاصي رنګ ولري د غه شان خاص لقبونه او تخلصونه تر موصوف وروسته راځي لکه: احمد شاه بابا، زرغونه انا.

په پښتوکښي د مجرد وصف د جوړولو مشهورې علامې دا دي:
(توب، تیا، والی، ی) دغه علامې د اسم او صفت په آخر کښي راځي
او مجرد وصفونه تري جوړيږي لکه:
سړی، سړی توب – خر، خرتوب – لیونی، لیونتوب – مین، مینتوب – روغ، روغتیا – تینګ، تینګتیا – لوړ، لوړتیا – لوی، لوی والی – تور، تور والی – جګ، جګوالی – ترکاڼ، ترکاڼي – وروړ، وروري –
د مجرد وصف د جوړولو دپاره ځیني نوري لاحقې هم شته خوشالونه یې لږ دي لکه:
واله، له (پښتون) څخه (پښتون واله).
ولي، له (خپل) څخه (خپلولي).
ګلوي، له (وروړ) څخه (وروړګلوي).
ینه، له (مړ) څخه (مړینه).
ښت، له (موړ) څخه (مړښت)، یا د (زوړ څخه (زړښت).
ه، له (پوه) څخه (پوهه)
مجرد وصفونه په نورو حکمونو کښي د مجردو نومو په شان دي او په جمله کښي فاعل مفعول او مضاف الیه واقع

کېږي. لکه:

مشر توب لوی لوی کارونه غواړي.

د بدن پاکوالي د صحت د پاره ضرور دي.

د ځلمي توب زمانه د کار او فعالیت زمانه ده.

## مصدر (زيږنده)

مصدر هغه کلمه ده چې بې له زمانې څخه يو فعل او کار ښيي او زمانه ترې نه معلومېږي. په پښتو کښې مصدر د لفظ او آخر په لحاظ په پنځه ډوله دی:

١- لام والا لکه: وهل - تلل.

٢- ول والا لکه: غورځول - ماتول - خندول - الوزول - تودول.

٣- يدل والا لکه: ګرځېدل - مړېدل - پاڅېدل.

۴- کول والا لکه: پورته کول، پخلا کول.

۵- کېدل والا لکه: پرې کېدل، وهل کېدل.

د مصدر معنوي قسمونه په دوه ډول ښودل کېږي:

١- لازمي مصدر: هغه دی چې فعل یې يوازې په فاعل تمامېږي او دريم شي يعنې مفعول ته ضرورت نلري. لکه: تلل، ګرځېدل او نور.

۲ ـ متعدی معلوم ـ چې فعل یې یوازې په فاعل نه تمامیږی بلکه مفعول هم غواړی . لکه : تړل ، ساتل ، پخول ، اشنا کول .

۳ ـ متعدی مجهول : چه فاعل یې معلوم نه وی . لکه : پری کیدل ، وهل کیدل او نور .

۴ ـ متعدی حکمی : چې د معنی په لحاظ لازمی وی مگر په استعمال کښی د متعدی مصدرونو حکم لری او د (ما ، تا ، ده) ضمیرونه ورسره استعمالیږی . لکه : ده وخندل ، هغه وژړل ، دغه ډول مصدرونه دادی : خندل ، ژړل ، غپل ، نڅل ، دانګل ، زانګل ، لامبل ، ټوخل ، توکل ، غړمبل ، توږل .

یادګیرنه :

لام والا مصدرونه متعدی هم راځی او لازمی هم مگر د (ول) او (کول) والا مصدرونه همیشه متعدی وی او د (یدل) او (کیدل) والا مصدرونه کله لازمی او کله متعدی مجهول وی .

لازمی لکه : ګرځیدل ، پخلا کیدل ، او متعدی مجهول لکه : د بیدل ، پری کیدل .

د پښتو مصدرونه د اشتقاق په لحاظ په دری ډوله دی ،

۱ ـ تغیرنه منونکی : هغه مصدرونه چې د حالیه افعالو په ګروپ

کښي خپله اصلي ماده ساتي او کوم اساسي بدلون پکښي نه راځي
تغیرنه منونکي مصدرونه دي لکه : (منل، ساتل) چي د حال،
مستقبل صیغي یې بې له کوم تغیره جوړیږي. مثالونه یې دادي :

| حال | مستقبل | امر | ماضي استمراري | فعلي صفت |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| منم | وبه منم | ومنه | مانه | منلی |
| ساتم | وبه ساتم | وساته | ساته | ساتلی |

۲ ـ قانوني تغیر منونکي : هغه مصدرونه دي چي د حالیه افعالو
په اصلي ماده کښي یې دیوې قاعدې سره سم تغییر راځي لکه : وتل، تلل
چي د حال په فعل کښي یې «ت» په «ځ» بدلیږي، مثالونه یې دادي :

| حال | مستقبل | ماضي استمراري | فعلي صفت | امر |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| وځم | وبه وځم | ځم به | ځم | ځه |

۳ ـ بې قانونه تغیر منونکي : هغه مصدرونه دي چي په حالیه
افعالو کښي یې اصلي ماده بې له کوم قانون او قاعدې بدلیږي دغه
ډول مصدرونه په پښتو کښي لږ او په دې ډول دي، رکتل، لیدل،
وژل، موندل نښتل، ختل،
چي د حالیه فعلونه یې داسې راځي، کورم، وینم، وژنم، مومم
نښلم، خیژم .

یادګیرنه ،

الف مول والا، کول والا، یدل والا، اوکیدل والا مصدرونه داشتقاق په لحاظ ټول قانوني مصدرونه دي او ټول افعال ورځني ديوې قاعدې سره سم جوړيږي .

ب : په پښتو کښې ټول مصدرونه دجمع مذکر حکم لري او ټول فعلونه ، صفتونه دربط کلمې ورسره دجمع مذکر په شکل استعمالیږي لکه :

مره وړځ وهل تکول ښه نه دي . زيات خوړل بد دي . ليدل کتل موسره وشول .

الف : حاصل مصدر :

هغه نوم چې فعلي معنی لري او د مصدر څخه جوړ شوی وي حاصل مصدر نوميږي . حاصل مصدر په پښتو کښې د مصدر په معنی راځي فرق دومره دي چې په حاصل مصدر کښې د اسميت رنګ غالب وي او په مصدر کښې فعلي مفهوم قوي وي . حاصل مصدر د مصدر څخه دلاحقو په زيا تولو جوړيږي د حاصل مصدر مشهورې علامې دادي : ۱ - نه ، لګه وهنه ، ساتنه ، لټونه ، الوزونه ، تلنه ، دريدنه ، غورځيدنه ، پخلاکيدنه .

۲ ـ کوچنی «ه» لکه: غورځیده، لمبیده، لیده، کاته او نور.
۳ ـ ښت ـ لکه: جوړښت، لګښت، مړښت.
۴ ـ ون ـ لکه: تړون، ګډون، لټون، لمسون.
۵ ـ الف ـ لکه: خندا، ژړا، لمبا، نڅا.
۶ ـ څرګنده (ه) لکه: ګټه، روغه، خټه، لمسه، زغاسته.
۷ ـ نرمه (ی) لکه: غورزی، برابری، ودانی.
۸ ـ نګ لکه: اوسیدنګ، پاڅیدنګ، غورزیدنګ.
په پښتو کښې د حاصل مصدر د جوړولو د پاره ځنې نوری علامې هم شته مګر یو یادوه مثاله لری لکه: خوراک، تیښکار، هستوګنه، خوځلاو.

ب: د آلې نوم:

آله د هغه شي نوم دی چه د فاعل او مفعول ترمنځ د فعل د رسولو واسطه او ذریعه وی لکه: میچ شړونی چه د مچانو د شړلو آلې ته وائی. د آلې نوم بسیط هم وی. لکه: اره، رنده او مرکب هم وی لکه: مرکبې (د مرکی ځای) آلې له متعدی مصدر څخه د فعلی مادې په پای کښې د (ونې، ی) په زیاتولو جوړیږي لکه:

له سرتړل څخه سرتړوني .

له ړنګ وهل څخه ړنګ وهوني .

له اورلړل څخه اورلړوني.

له پاکول څخه پاکووني .

له چاڼول څخه چاڼووني.

له توږل څخه توږووني .

له لاس پاکول څخه لاس پاکي .

کله کله د (ی) په غورځولو هم ویل کیږي ، لکه : لاس پاک ، مچ شړ

# فعل

فعل هغه کلمه ده چه په یوه زمانه کښې دیوه کار په کولو او یا کیدلو دلالت کوي. لکه ، ( واني ، وبه وایې ، وویل ) چې لومړۍ کلمه په حال دوهمه په راتلونکې او دریمه په تیره زمانه کښې دویلو کار او چار ښیي .

فعل داشخاصو په لحاظ په دری دوله دی : دمتکلم فعل ، دمخاطب فعل او دغایب فعل ، چه دغه هر یو بیا په مفرد ، جمع ، مذکر او مؤنث ویشل کیږي .

فعل د معنی په لحاظ په لازمی، متعدی، معلوم او مجهول مثبت او منفی باندی ویشل کیږی، لازمی فعل یوازی په فاعل تمامیږی، لکه : پاڅید، کیناست، وخوت او متعدی فعل سربیره په فاعل مفعول هم غواړی یعنی یوازی په فاعل نه تمامیږی. لکه : ځلمی کتاب لولی، زه خط لیکم، دی ډوډی خوري .

که چیری په جمله کښی دیو فعل فاعل معلوم وُهغه ته معلوم فعل وائی. لکه :

زه دی پیژنم خوته مانه پیژنی. او که فاعل يې معلوم نه وه هغه ته مجهول فعل وائی. لکه : ورمه شپه میاشت لیدل شوی ده، ځلمی هره ورځ وهل کیږی .

مثبت فعل دیو کار په کولو او منفی يې په نه کولو دلالت کوی . لکه : زه هره ورځ لا مبم. څوك چی نه لا مبي د هغه وجود خیرن وی.

فعل د زمانی په لحاظ په دری ډوله دی : حال، مستقبل ، ماضی. مونږ په پښتو کښی ټول افعال په دوو لویو ګروپونو ویشو :

۱ - د حالیه افعالو ګروپ : چی په دی کښی د حال ټول قسمونه د مستقبل ټول قسمونه او د اَمر قسمونه شامل دی.

۲- د ماضي افعالو ګروپ چې په دې ګېنې تولې ماضي ګاني او فعلي صفتونه شامل دي.

الف: د حال فعل:

د حال فعل هغه کلمه ده چې په موجوده زمانه کښې دیو کار په کولو دلالت کوي لکه: وهي، غواړي، ګورم، کړم.

حال په پښتو کښې په درې ډوله دی:

۱- استمراري (اخباري) حال: چه په موجوده زمانه کښې دفعل پر دوام او جریان دلالت کوي، دغه ډول حال له مصدره څخه د مصدرې علامو پرځای دفعلي ضمیرونو په راوړلو جوړیږي او دغه پنځه صیغې لري.

اورم، د مفرد متکلم دپاره - زه ستا خبره اورم.

اورو، دجمع متکلم دپاره - مونږ ستا خبره اورو.

اورې، دمفرد مخاطب دپاره - ته زما خبره اورې.

اورئ، دجمع مخاطب د پاره - تاسې زما خبره اورئ.

اوري، دغایب د ټولو صیغو دپاره - دی زما خبره اوري.

دا زما خبره اوري.

دوی زما خبره اوري.

۲- مطلق حال: په موجوده زمانه کښې په مطلق ډول د یوه کار په کولو دلالت کوي. مطلق حال د استمراري حال په سر کښې د «و» په زیاتولو جوړیږي. او دغه صیغې لري:
واورم، واورو، واورې، واورئ، واوري.

۳- امکاني حال: په موجوده زمانه کښې دیو کار په امکان اونه امکان دلالت کوي. امکاني حال د فعلي صفت په آخر کښې د شول د امدادي فعل په گردانید لو جوړیږي او دغه پنځه صیغې لري لکه: اوریدلی شم، اوریدلای شو، اوریدلای شې، اوریدلای شئ، اوریدلای شي. په تغیر منونکو مصدرونو کښې د مصدر په اصلي ماده کښې یو تغیر پیښیږي او بیا ور سره متصل ضمیرونه گردانیږي لکه:

غواړم، غواړو، غواړې، غواړئ، غواړي.
گورم، گورو، گورې، گورئ، گوري.

د (ول) او (کول) والا مصدرونو استمراري او امکاني حال د «ل» والا مصدرونو په شان جوړیږي. یعنې په اول کښې د «ل» پر ځای متصل ضمیرونه گردانیږي.

او په دوهم کښې د فعلي صفت په پای کښې د شول مصدر گردانیږي.

لکه :

استمراري حال: جوړوم - جوړوو - جوړوې - جوړوئ - جوړوي.
امکاني حال: جوړولای شم - جوړولای شو - جوړولای شي - جوړولای شئ - جوړوي - . جوړولای شي.

مګر مطلق حال د فعلي مادې په پای کښې د کړل د مصدر په ګردانولو جوړیږي، لکه :

جوړکړم، جوړکړو، جوړکړې، جوړکړئ، جوړکړي.
پخلاکیږم، پخلاکیږو، پخلاکیږې، پخلاکیږئ، پخلاکیږي.

دیدل اوکیدل والا مصدرونو په استمراري حال کښې یوازې (د) پر «ږ» بدلیږي اونوره قاعده یې د «ل» والا مصدرونو په شان ده. لکه :

جوړیږم، جوړیږو، جوړیږې، جوړیږئ، جوړیږي.
پخلاکیږم، پخلاکیږو، پخلاکیږې، پخلاکیږئ، پخلاکیږي.

امکاني حال یې دل والا مصدر په شان جوړیږي او د مصدر ی (ل) په پای کښې یې «ی، ای» راوړل کیږي. لکه :
اوچتیدلای شم، اوچتیدلای شي، اوچتیدلای شو، اوچتیدلای شئ. ترآخره.

پورته کیدلای شم، پورته کیدلای شی، پورته کیدلای شو، پورته کیدلای شئ. ترآخره.
مطلق حال يې د فعلی مادی په آخر کښی د «شول» په گردان جوړیږی. لکه:
جوړشم، جوړشو، جوړشوې، جوړشوئ، جوړشوی.
پخلا شم، پخلا شو، «ترآخره»
یادگیرنه:
الف: په لام والامصدر ونو کښی ځینی داسی دوه توکیز مصدرونه هم شته چې مطلق حال يې د لهجی په فشار - جوړیږی. لکه: شملم، کښینم، پوری وځم، کښیوځم.
په دغو افعالو کښی که چیری خج په لومړی څپه راشی مطلق حال دی او که په دوهمه یا دریمه څپه راشی نو استمراری حال دی.
ب: د تلل او راتلل د مصدرونو مطلق حال د مادې په تغیر بې قانونه جوړیږی. لکه: ولاړشم، راشم.
ب: مستقبل فعل:
مستقبل هغه کلمه ده چې په راتلونکی زمانه کښی دیوکار

په کولو دلالت کوي لکه : وبه يې ليکم، وبه يې وينم، وبه يې لولم.
مستقبل هم د حال په شان دري صور تونه لري.
استمراري، مطلق او امکاني.
۱: استمراري مستقبل د استمراري حال په آخر کښې د «به»
په زياتولو جوړيږي. او د حال په شان پنځه صيغې لري لکه:
اورم به ، اورو به ، اورې به ، اورئ به ، اوري به
ګورم به ګورو به ګورې به ګورئ به ګوري به
۲: مطلق مستقبل د مطلق حال په منځ کښې د «به» په زياتولو
جوړيږي لکه: وبه غواړم ، وبه ليکم ، وبه ګورم.
جوړ به يې کړم ، جوړ به شم ، پخلا به شم ، څه به مسلم
کښې به نم ، پورې به وځم ، کښې به وځم ، لاړ به شم ، را به شم.
يادګيرنه: مګر په جمله کښې دغه د مستقبل علامه «به» د فاعل
سره نښتې راځي ، لکه: زه به خپل ورور ته خط وليکم.
موږ به خپل ورور ته خط وليکو.
موږ به خپل استاذ ته خط وليکو.
ته به چا ته خط وليکې؟
تاسې به چا ته خط وليکئ؟

دی به خپل پلار ته خط ولیکی.

دوی به خپل کاکا ته خط ولیکی.

۳- امکانی مستقبل له امکانی حال څخه په دی ډول جوړیږی چی په منځ کښی یې «به» راوړل کیږی، لکه:

وبه یې لیدلای شم. وبه یې خوړلای شې. جوړ به یې کړای شې؟

ج: د امر فعل:

هغه کلمه چی دهغې په واسطه د یو کار د کولو حکم کیږی د امر فعل باله شی. لکه: وګوره، کښېنه. وساته - حاضر امر په پښتو کښی پر دوه ډوله دی.

یو استمراری او بل مطلق امر دی. استمراری امر له مصدر څخه داسی جوړیږی او د مصدر د «ل» پر ځای د مفرد د پاره «ه» او د جمع د پاره (ئ) راوړل کیږی او دغه ورسته صیغې لری.

ساته - ساتئ. ګوره - ګورئ. جوړوه - جوړوئ

پخلاکوه - پخلاکوئ. پخلاکیږه - پخلاکیږئ. پاڅیږه - پاڅیږئ

یادونه: د لته د حال غوندی د یدل «د» په «ږ» بدلیږی.

او مطلق امر په لام والا مصدر ونو کښی د استمراری امر په اول کښی د «و» په راوړلو جوړیږی. لکه: وساته - وساتئ، وګوره - وګورئ

یادګیرنه :

په لام والا مصدر، ونو کښې دځینو دوه توکیز و مصدر، ونو مطلق امر دلهجې په فشار یعنې په خج اچولو جوړیږي، لکه : څمله، کښېنه، پورې وځه، پاځیږه، بوځه .

په دغو افعالو کښې که خج په لومړي څپه راشي مطلق امر او که په دهمه یادر یمه راشي استمراري امر دي .

دراتلل او تلل د مصدر، مطلق امر بې قانونه : « راشه، ولاړشه » راځي . د (ول) والا او (کول) والا مصدر، ونو مطلق امر دکړل دمصدر په ګردان سره جوړیږي. لکه :

جوړ کړه ، جوړ کړئ ، جوړ دې کړي .

پخلا کړه ، پخلا کړئ ، پخلا دې کړي .

دیدل او کیدل والا مصدر، ونو مطلق امر د (شول) د مصدر په ګردانولو سره سازیږي، لکه :

سم شه، سم شئ، سم دې شي، پخلا شه، پخلا شئ، پخلا دې شي

دغایب مطلق امر دپاره دمطلق حال په منځ کښې « دې » اچول کیږي

لکه : ودې ساتي ، پخلا دې کړي .

جوړ دې کړي، پخلا دې شي .

او د غایب استمراري امر د پاره د استمراري حال په آخر کښې «دي» راوړل کیږي لکه: ګوري دي. جوړوي دي.

## د: ماضي فعل:

د ماضي فعل هغې کلمې ته وائي چې په تیره زمانه کښې پریو فعل دلالت کوي. لکه: ولوید، پاڅید، وساته او نور.

ماضي په پښتو کښې ډیره ولونه لري او په وروسته ډول ښودل کیږي:

۱- استمراري ماضي: چه په تیره زمانه کښې دیو فعل دوام او استمرار ښیي. استمراري ماضي له مصدر څخه ډیره اسانه جوړیږي او د مصدر په پای کښې متصل ضمیرونه ګردانیږي او دغه اته صیغې جوړیږي.

۱- ختلم - ختم د مفرد متکلم د پاره. لکه: زه و نې ته ختم یا ختلم.
۲- ختلو - د جمع متکلم د پاره. لکه: موږ وني ته ختو یا ختلو.
۳- ختلې - د مفرد مخاطب د پاره لکه: ته و نې ته ختلې.
۴- ختلئ - د جمع مخاطب د پاره لکه: تاسې و نې ته ختلئ.
۵- خوت - د مفرد مذکر د پاره. لکه: دی و نې ته خوت.
۶- ختل - د جمع مذکر د پاره لکه: دوی و نې ته ختل.

۷- ختله - د مفرد مؤنث دپاره لکه : داوني ته ختله .
۸ ختلی - د جمع مؤنث دپاره لکه : دوی وني ته ختلی .
په متعدی افعالو کښي د ماضي ګانو ګردان د مفعول په واسطه سره کیږي لکه :

زه ځملمی لیدلم. «لیدم»
مونږ ځلمی لیدلو .
ته ځلمی لیدلې .
تاسی ځلمی لیدلئ .
ما ځلمی لیده .
ما ملالی لیدله .
ما هلکان لیدل .
ما نجونې لیدلی.

نوت : استمراری ماضی په پښتو کښي همیشه د مصدر ماده ساتي او هیڅکله پکښي اساسي تغیر نه راځي، تر دی چي په تغیر منونکو مصدرونو کښي هم خپل شکل نه بدلوی په دی لحاظ د ماضي استمراري په لحاظ په پښتو کښي یو بې قانونه مصدر هم نشته. لکه: د «راتلل» مصدر ونه چي په نورو ماضي ګانو کښي

تغیر کوی ، مګر په ماضی استمراری کښې تغیر نه کوی ، لکه :
تلم ، راتلم او نور .
## ۲- مطلقه ماضی :
مطلقه ماضی هغه ده چې په مطلق ډول په تیره زمانه کښې
د یو فعل په کولو دلالت کوی او کوم قید تری نه معلومیږی مطلقه
ماضی د استمراری ماضی په سر کښی د « و » په زیاتولو جوړیږی
او اته صیغې لری .
مثالونه یې دا دی :
زه په باغ کښې وګرځیدم .
موږ په باغ کښې وګرځیدو .
ته چیری وګرځیدی ؟
تاسی چیری وګرځیدئ ؟
دی په باغ کښې وګرځید .
دوی په باغ کښې وګرځیدل .
دا په باغ کښې وګرځیده .
دوی په باغ کښې وګرځیدي .

نوټ: د «راتلل اوتلل» د مصدرو مطلقه ماضي بې قاعدي (راغی او ولاړ) جوړیږي.

د «ول اوکول والا» مصدرونو مطلقه ماضي دفعلي مادي په اخرکښې دکړل د مصدر په ګردانولو جوړیږي لکه:
جوړکړم، جوړکړو، جوړکړې، جوړکړئ، جوړکړ، جوړکړل، جوړه کړه، جوړې کړې.

دیدل والا اوکیدل والا مصدرونو مطلقه ماضي د (شول) د مصدر په ګردان جوړیږي، لکه: جوړشوم، جوړشو، جوړشوې، جوړشوئ، جوړشو، جوړشول، جوړه شوه، جوړې شوې پخلاشوم ترآخره.

## ۳ - نژدې ماضي:

په نژدې زمانه کښې دیوکارپه کولودلالت کوي نژدې ماضي د فعلي صفت په آخرکښې د (یم، یو، يې، يئ، دی، ده، دي) په ګردانولو جوړیږي لکه: ختلی یم، ختلي یو، ختلي يې، ختلي يئ، ختلی دی، ختلې ده، ختلي دي،

لیدلی یم، لیدلي یو، لیدلي يې، لیدلي يئ، لیدلی دی، لیدلې دې، لیدلې ده، لیدلي دي.

د «ول، یدل، کول اوکیدل والا» مصدرونو نژدې ماضي هم د

فعلی صفاتو په آخر کښې د دغو کلمو په راوړلو جوړیږی لکه:

جوړ کړی یم تر آخره.

پخلا کړی یم 〃

جوړ شوی یم 〃

پخلا شوی یم 〃

## ۴ - لری ماضی:

په لری زمانه کښې د یو کار په کولو دلالت کوی، لری ماضی د فعلی صفت په پای کښې د «وم، وو، وې، وئ، و، وو، وه، وې» په ګردانولو جوړیږی لکه: ختلی وم، ختلی وو، ختلی وې، ختلی وئ، ختلی و، ختلی وو، ختلې وه، ختلی وې.

لید لی وم تر آخره.

جوړ کړی وم تر آخره.

پخلا کړی وم تر آخره.

پخلا شوی وم تر آخره.

## ۵ - امکانی ماضی:

امکانی ماضی هغې ته وائی چه په تیره زمانه کښې د یو کار امکان ښیی او پر دوه ډوله ده. استمراری او مطلقه.

امکانی استمراری ماضی د فعلی صفت په پای کښې د (شوم، شوو، شوی، شوې، شو، شول، شوه، شوې) په گردانولو جوړیږي. لکه:
ختلای شوم، ختلای شوو، ختلای شوی، ختلای شوې، ختلای شو، ختلای شول. ختلای شوه، ختلای شوې.

او مطلقه امکانی ماضی د امکانی استمراری ماضی په سرکښې د «و» په زیاتولو جوړیږي لکه:
وختلای شوم، وختلای شوو، وختلای شوې، وختلای شوې، وختلای شو، وختلای شول، وختلای شوه، وختلای شوې.

٦ - احتمالی ماضی:

په تیره زمانه کښې په احتمالی ډول دیو کارپه کولو دلالت کوی، احتمالی ماضی د فعلی صفت په آخر کښې د (به یم، به یو، به یې، به یئ، به یې)، په گردانولو جوړیږي لکه: (راغلی به یم، راغلی به یو، راغلی به یې، راغلی به یئ، راغلی به یې)

نوت: د فعلی صفت په سرکښې (د بنایی، کوندی) د کلمو په راوړلو هم احتمالی او شکیه ماضی جوړیږي. لکه:
بنایی راغلی وی، کوندی تللی وی، په دی صورت کښې یې په آخر کښې یوازی «وی» راځي او د غایب دپاره استعمالیږي.

۷ - تمنايي ماضي :

په تيره زمانه کښې د يو فعل د کولو ارزو بښکاره کوي په تمنايي ماضي کښې د فعلي صفت څخه وروسته «وای» او په سر کښې يې «که ، کشکې» راځي لکه : کشکې زه هم تللی وای ، که ته ور غلی وای ښه به وُ - زړه مې کيده چې تللی وای .

۸ - تاکيدي ماضي :

له ليري ماضي څخه د فعلي صفت په پای کښې د «به» په زياتولو جوړيږي لکه :

راغلی به وُ ، تللی به وې .

يادونه :

کومې صيغې چې له صفت فعلي څخه جوړيږي په هغو فعلي صفت د مفرد مذکر دپاره په نرماء «ی» د مفرد مؤنث او جمع مؤنث دپاره په اوږده (ې) او د جمع مذکر دپاره په څرګنده (ي) راځي .


فعل
فعل د معنیٰ په لحاظ
متعدي
حُلمی کتاب لولی.
لازمی فعل
پاڅید.
مجهول
وهرمه شپه مياشت ليدل شوی ده.
معلوم
زه دی پيژنم.
منفي
زه نه لامبی.
مثبت
زه هورورځ لامبم.
فعل د زمانی په لحاظ
ماضي
مطلق
لکه
زه باغ کښی وگرځيدم.
استمراری
لکه
زه غره ته ختم.
نژدی
لکه
گرځيدلی يم.
لری
لکه
گرځيدلی وم.
امکانی
لکه
گرځيدلی شوم.
احتمالی
لکه
گرځيدلی به وم.
تمنائی
لکه
گرځيدلی وای.
تاکيدی
لکه
گرځيدلی به وم.
حال
استمراری
لکه
اورم.
مطلق
لکه
واورم.
امکانی
لکه
اوريدلی شم.
مستقبل
استمراری
لکه
اورم به.
مطلق
لکه
وبه ليکم.
امکانی
لکه
وبه يی ليکلی شم.
فعل د اشخاصو په لحاظ
متکلم فعل
مذکر
لکه
زه راغلم.
مفرد
لکه
زه راغلم.
مونث
لکه
زه راغلم.
جمع
لکه
مونږ راغلو.
مخاطب فعل
مذکر
لکه
ته راغلی.
مفرد
لکه
ته راغلی.
مونث
لکه
ته راغلی.
جمع
لکه
تاسو راغلی.
تاسی راغلی.
غایب فعل
مذکر
دی راغی.
مفرد
دا راغله.
یا
دی راغی
مونث
دا راغله.
جمع
دوی راغلی.
دوی راغله.

# قیود

قیود هغه کلمې دي چې د فعل سره یوځای کیږي او هغه په یو حالت او وضعیت پورې مقید کوي مثلاً : په دې جمله کښې «زلمی راغی» هیڅ قید نشته او که وو ایو چې «احمد په خندا راغی» نو د لته یو بل شی هم پیدا شو چې د راتلو فعل يې په هغه پورې مقید کړ او هغه د خندا حالت دی، قیود په پښتو کښې ډیر قسمونه لري او د بیلو بیلو مقصدونو د پاره راځي، خو مشهور قسمونه يې دا دي:

الف: د زماني قید: چه یو فعل ته د زماني او وخت قید ورکوي لکه:

پرون ولاړم او س راغلم - زه همیشه خپل کار ته د وخته ځم، هرکله راشي، هرکله اوسي.

ب: د ځای او مکان قیود: لکه: دلته کښېنه، په چوکۍ کښېنه، پاس وخیژه.

ج: د شک قیود: چې یو فعل ته د شک قیود ورکوي لکه:

کوندی راشي، بنايي سبا ته ولاړ شم.

د: د علت او سبب قیود: چې یو فعل ته د علت او سبب قیود ورکوي لکه: ولی ځي، ځله نه کښېني.

هـ: د وضعیت او حالت قیود: چې یو فعل ته د وضعیت او حالت قیود

ورکوی . لکه : ژر ژر راځه ، په منډه منډه ځه ولی ورو وروځې .
ځنی نور قیود هم شته چې د بیلو بیلو مقصد ونو د پاره استعمالیږي او د فعل معنی ته یو معنوی قید ورکوی لکه : ناڅاپه ولاړ، سباته هرو مرو راشه، دا مضمون پرله پسی خپرېږی . . . .

یادونه :

په پښتوکښې صفات هم د قید پرځای استعمالیږی لکه : یوازی - مه ځه ، له ده سره ملګری ولاړ شه ، پرون له مانه پټ ولاړی ، زلمی هلته غلی ناست دی .

کله یو صفت د بل صفت د پاره هم د قید وظیفه اجراکوی لکه :
زلمی ډیر تړی دی ، دی لږ ناروغه دی ، دی ښې خوږې خبری کوی .

# د ارتباط توری

د ارتباط توری په پښتوکښې د دوکلمو او د دوو جملو ترمنځ د نژدیوالی او ارتباط وظفه اجراکوی لکه : زلمی له کوره راغی (له) د ارتباط توری دی چې د کور، زلمی او راغی ترمنځ نژدیوالی او تعلق - پیداکوی د ارتباط توری ډیر قسمونه لری او د بیلو بیلو مقصدونو د پاره راځی د ارتباط اصلی توری دا دی :

«له، ته، لره، په، کښې، پر، تر، له، بې» ځني نور توري هم شته
چې کله ځانله اوکله د تاکيد په ډول استعماليږي اوهغه دا دي:
«نه، څخه، ځني، لره، کره، د پاره، باندې، کښې، لاندې، پورې،
په شان، غوندې، هسې، پسې» اونور.
مثالونه يې دادي:
توريالي په کټ کښې ناست دی، پر ميز باندې څه پراته دي؟
بې علمه ژوندون گران دی. تر ور څخه تيرې او بيا نه راگرځې.
د زړه نه مې خدای خبر دی. د منصور هسې په دار نشی رحمانه.
له بازاره زه راغلم او د نرخه ته خبريې. اوريه راغله دکور ميرمن-
شوه. په غوا پسې بچې روان وی.
دعطف توري هم دارتباط وظيفه اجراکوي خوزيات د دوو-
جملو په منځ کښې د ارتباط او تړون دپاره راځي دعطف توري دادي:
او، يا، بيا، هم، پسې، او نور. په جملو کښې داسې ويل کيږي:
توريالي ياتې شوا او زه راغلم. اول مې پرکړه بيا مې مړکړه. يا لويو
غروته ځه يا لويو کورو ته. هم خرما هم ثواب. اول زلمی ځي پسې-
توريالی ځي.
په پښتو کښې ځني نور توري هم شته چې سربيره په خپلو خاصو

معنیٰ کانو د عطف کار هم ځني اخیستل کیږي لکه:

«بل، ترڅو، سرهددی، په تیره، که نه، سر بیره، که څه هم، لکه چه»

اونور . مثالونه يې دادي:

يو مې دلبر ځي بل راته زړه وړي — زړه مې په داوړې چې دلبر نومي

زه پرون راغلی وم، لکه چه ته کور کښې نه وې.

باران ډیر وشو سره ددې هوا کرمه ده.

لرګي هر وخت ضروردي په تیره په ژمی کښې.

تا ته ودریدم که نه اوس به رسید لی وم.

په پښتو کښې د ندا تعجب او افسوس توری دکلمو په سر کښې راځي او یوازی د ندا تعجب افسوس مقصد ادا کوي لکه:

ای وروره! اې هلکه! هی هی داڅه چل وشو! — اوهو څومره خلک راغلی دي! اوف خدایه مړ شوم!

سر بیره پر دې په پښتو کښې د قسم، تشبیه، تنبیه، شک، تاکید، بیان او شرط توری هم شته. چې مثالونه يې په لاندې ډول دي:

لکه: خدای بزو دروغ نه وایم. څنګه غر همغسې ځناور، ماوی عین کمه گل دی دغونچې په لمن نغښتي. داسرې بیخي لیوني دي ګوندې زلمي نن راشي. که ته راغلې زه به هم راشم.

زلمی وایې چې زه به ستا کار وکړم .

د نفی توری په پښتو کښې دا دی : (نه ، مه ، نا ، بې) نه کوری ، مه کوه ، مه راځه ، نابللی ، ناروغ .

# کلام او جمله

کلام پر دوه ډوله دی یو نیم کړی او بل پوره کلام دی که دیوی خبری څخه مخاطب ته پوره فایده ونه رسی هغه خبره نیمګړې ده لکه : د احمد تره . سره زر . او کومه خبره چې بل تری پوره مطلب واخلی پوره کلام بلل کیږی ، لکه :

د احمد تره راغلی دی . دا خبره سره زر ده . پوره خبری او کلام ته جمله وایې .

په پښتو کښې د جملې مشهور قسمونه دا دی :

۱ - امریه جمله :- چې مطلب پکښې دیوه کار غوښتل وی ، لکه : ډوډی وخوره ! سبق ووایه ! کار وکړه !

۲ - استفهامیه جمله : چې مطلب پکښې دیو شی پوښتنه وی لکه : د غه هلك د چا ځوی دی ؟ ستا سو مکتب چیری دی ؟ ته ځوروونه لری ؟

۳ - خبریه جمله : هغه ده چې یوشی د حال او کیفیت څخه حکایت کوی، لکه :

د غه هلك محمود نومیږی . زمونږ په باغ کښې د مڼوونی شته .

۴ - بیانیه جمله : هغه ده چې د بلې جملې حال بیانوی، لکه :

پرون مې واوریدل چې د مکتب اول نمره کانو ته انعام ورکوی .

ښا رو یوه مرغۍ ده، چې خبری هم زده کولای شی .

امریه او استفهامیه جملو ته انشائیه جملې هم وائی .

۵ - کومه جمله چې د بلې سره ارتباط نلری هغه مفرده جمله بولی، او کومه جمله چې له بلې سره تړلې وی مرکبه جمله بلل کیږی په پښتو کښې ټولې جملې د اسمیه او فعلیه په نومونو ویشل کیږي فعلی جملې په پښتو کښې ډیری دی .

۶ - فعلیه جمله : هغه ده چې له فعل او فاعل څخه جوړه شوی وی، لکه : زلمی راغلی دی . توریالی تللی دی، زه ځم، زه به اوس ولاړ شم . او په متعدی افعالو کښې مفعول هم ورسره راځی لکه : زلمی زما خبره واوریده . ده یو ښه کتاب واخست .

دی د و رور خبره اوري .

۷- اسمیه جمله:- هغې ته وايي چې پوره فعل پکښې نه وي اوله مبتدأ او خبراو نیمګړی فعل څخه جوړه شوی وي، نیمګړی فعلونه په پښتوکښی دادی چې دربط کامی هم ورته وايي.
(دی، ده، دي، وم، وو ترآخره، یم، یوترآخره) مثالونه یې په لاندی ډول دی:
حمید یوناز کخیال شاعر دي. نازو انا یوه پوهه میرمن وه، زه په دی خبره پوه یم، زه پرون دلته ناست وم.
په پښتوکښی متعدی فعل په ماضیه افعالوکښی د مفعول او په حالیه افعالوکښی دفاعل تابع دی. او په لازمی افعالوکښی تل دفاعل تابع وي. یعنی په تذکیر، تأنیث، مفرد او جمع کښې په اول کښی د مفعول او په دوهم کښې دفاعل متابعت کوی. لکه:
ماضیه افعال: ما زلمی ولید، ما نجیبه ولیدله، نجیبه ماولیدلم
ماهلکان ولیدل، هلکان ما ولیدل، ما نجونې ولیدلې، زه زلمی ولیدم، مونږ زلمی ولیدو، ته زلمی ولیدې، تاسی زلمی ولیدئ.
حالیه افعال: زه زلمی وینم. زه تورپیکی وینم، مونږ زلمی وینو،
لازمی افعال: زلمی پاڅید، دی بام ته خیژی. ملالی پاڅیده، دا بام ته خیږی. زه بام ته خیژم، مونږ بام ته خیژو.

که دیوفعل دپاره دوه فاعله یادوه مفعوله دعطف په صورت راشي چې یومذکروي بل مؤنث نو فعل دمذکرتابع دی او فعل دجمع مذکر په شکل راځي لکه: زلمی او ملالی له مکتبه راغلل، چای او بوره مې واخستل.

که چیری فاعل او یا مفعول جمع وی او دعطف په صورت راشي نو فعل دنژدی فاعل یا مفعول تابع کېدل کیږی. لکه: هلکان او نجونې اوس له مکتبه راغلې. نجونې او هلکان له مکتبه راغلل. دوی دوه ختکی او دوې هندوانې وخوړې. دوی دوې هندوانې او دوه ختکی وخوړل.

په اسمیه جمله کښې که چیرې مبتدأ او خبر دواړه نومونه وی نو دربط کلمې دنژدیوالی په وجه دخبر تابع دی. لکه: پوهه یو قوت دی، علم یو رڼا ده، ادب دخبرو مالګه ده. دروغ بد عادت دی او که چیرې دواړه نومونه نه وی بلکه یو صفت او بل اسم وی نو دربط کلمې دنوم تابع کیږی مبتدأ وی او که خبر. لکه: داخبره سره زر ده. داکور تیاره دی. دروغ ناروادی. یوه هفته اوه ورځې ده. اوه ورځې یوه هفته ده. که په اسمیه جمله کښې مبتدأ او خبر دعطف په صورت

دوه نومونه راشي نوصفات او د ربط توري د نژدي کلمې تابع کښل کيږي. لکه: د ده په شعر کښې زيات جوش او جذبه پرته ده.

# تجزيه

تر اوسه مو د ژبې دود تر عنوان لاندې يو لړ مهمو موضوعاتو ته کتنه وکړه (نوم، ضمير، صفت، فعل، قيد او حرف ربط) او د هر يوه ډولونه مو وڅيړل، نو د دې لپاره چې نوموړي مطالب په متن کښې وپيژنو، لازم ښکاري چې په لنډ ډول د شپږم ټولګي د پښتو د مضمون په يوه موضوع کښې پورتني مفاهيم په خپلو ترکيب شوو اجزاو باندې تجزيه کړو. خو تر مخه له دې ضرور ښکاري چې تجزيه تعريف او وپيژنو.

تجزيه په لغت کښې: جزجز، کول، بيلونه، جلاکونه، برخي برخي يا ونډ ونډ کونه پر اجزاوو سره الا يده کونه (عليحيده) دوي برخي کونه، ټوک ټوک کونه او پر بر خو ويشنه او د صرف و نحو په اصطلاح کښې: جدا کول د کلمو په يوه جمله کښې او د هرې کلمې تعينول چې نوموړې کلمه د کوم ډول څخه، او څه شي ده.

چې نوموړی متن په لاندې ډول تجزیه شوی دی.

حریص همیشه محروم او

صفت فاعلی — قید زمان — صفت مفعولی — حرف ربط او عطف

بې نصیبه وي. د لوی اختر

حرف نفي — صفت مفعولی — دشته والی (فعل) — د اضافت (توری) — قیدی صفت — د زمانی قید

ورځ وه، مسلمانانو قربانی کولې،

د زمانی نوم (اسم زمان) — معلوم ماضی فعل — جمع اسم — خاص نوم — استمراری ماضی فعل ضمیر جمع

یو حریص سړی وویل اول به

د عدد نوم — فاعلی صفت — اسم عام — ماضی مطلق فعل — توصیفی عدد — حرف ربط شک

ولاړ شم د نورو کلو غوښې

فعل مضارع — ضمیر متکلم — د اضافت توری — قید مکان — د اسم مکان جمع — اسم عام جمع

به راټولې کړم د خپل

حرف ربط شک — فعلی صفت — فعل مضارع مفرد متکلم — د اضافت توری — د مکان قید

کلي غوښې خو مې خپلې دي

اسم مکان — اسم عام جمع — قید ملکی — اضافی ناخپلواک (ضمیر) — ملکی متکلم ضمیر — دشته والی (فعل)

ړهې. شو بل کلي ته

صفت فاعلی — فعل ماضی — د عطف توری — اسم مکان — د ربط توری

ورغی هغوی غوښی تقسیم کړی

فعل ماضی مفرد غایب معلوم | د جمع اشاری غایب ضمیر | اسم جمع عام | اسم مفعول | فعلی صفت

وی څه نه وُ چی ورکړی

رشته والی فعل | مبهم ضمیر | حرف نفی | د شید والی فعل د جمع فعل | قید | اسم مفعول

یې واېٔ خالی لاس خپل کلی

ضمیر غایب | فعل ماضی | صفت | موصوف | ملکی ضمیر | اسم مکان

ته راغی دلته هم خلکو

حرف ربط | ماضی غایب فعل ضمیر | مکانی اشاری ضمیر | د عطف توری | اسم جمع

غوښی ویشلی وی هیڅ نه

اسم جمع عام | صفت مفعولی | رشته والی فعل | مبهم ضمیر | حرف نفی

وُ پاتی .... حریص د خپل حریص

د شته والی فعل | قیدی صفت | صفت فاعلی | د اضافت توری | ملکی ضمیر | صفت

په سبب محروم پاتی شو .

حرف ربط | صفت قیدی | اسم مفعول | د شته والی فعل | فعل ماضی

( وَمِنَ اللّٰهِ التَّوفِیق )



# مأخذونه


| دکتاب نوم | مؤلف - ژباړونکی |
|---|---|
| ۱- قرآنکریم | |
| ۲- د پښتو ادب تاریخ لومړی ټوک | پوهان عبدالحی حبیبی |
| ۳- 〃 〃 〃 دوهم ټوک | 〃 〃 〃 |
| ۴- د پښتو قاموس | د افغانستان علوموا کادیمی |
| ۵- فرهنګ عمید | عمید |
| ۶- د نصاب درسی کتابونه | د تعلیمی نصاب پروګرام |
| ۷- د پښتو ګرامر | صدیق الله رښتین |
| ۸- پښتو صرف ونحو | خیال بخاری |
| ۹- د I.R.C دثانوی دورې مواد | ډاکټروال محمد حسین |
| ۱۰- بدیع اوبیان | پوهندوی نوراحمد شاکر |
| ۱۱- کلید افغانی | د پادری هیوز اثر (د خیړندوی عبدالله خدمتګار په سریزه) |
| ۱۲- فولکلورکیډی | علی محمد سوبمن |
| ۱۳- د پښتو شفاهی ادبیات | غوټی خاوری |
| ۱۴- اوسنی لیکوال | عبدالرؤف بینوا |
| ۱۵- پښتانه شعراء څلورم ټوک | څیړندوی عبدالله بختانی |

# تصحیح نامه

| صفحه | کرښه | غلط | صحیح |
|---|---|---|---|
| ځ | ۷ | لومړي برخ | لومړۍ برخه |
| 〃 | ۲ | پاکسسان | پاکستان |
| 〃 | ۱۴ | نیجه | نتیجه |
| ۹ | ۱۵ | ولایسنو | ولایتونو |
| 〃 | ۱۲ | کسی | کښې |
| ۱۸ | ۴ | یحی | چې |
| 〃 | ۵ | پرگرام | پروگرام |
| 〃 | ۶ | لنډی | لنډۍ |
| 〃 | ۷ | نیمکی | نیمګې |
| 〃 | ۱۴ | مشترک نظمونه | مشترک نظمونو |
| — | ۶ | معلو | معلومه |
| 〃 | 〃 | ظاهر | ظاهري |
| ۶ | 〃 | الفاط | الفاظ |
| ۶ | ۱۵ | اشائی | اشیائی |
| 〃 | — | تیرل | تیر |
| 〃 | ۶ | شابته | ثابته |
| ۱۴ | ۴ | وروسه | وروسته |
| ۱۸ | ۴ | اوبه | اوپه |
| ۱۲ | ۲ | عرض | غرض |
| 〃 | ۶ | تایخ | تاریخ |

| صفحه | کرښه | غلط | صحیح |
|---|---|---|---|
| ۱۲ | ۱۱ | مملت | مملکت |
| 〃 | ۱۸ | ددنیا | ددنیا |
| ۱۹ | ۸ | پہ دعلم | پہ دی علم |
| 〃 | ۷ | یو | یوی |
| 〃 | ۱۱ | جوړ | جوړو |
| ۲۱ | ۴ | توضح | توضیح |
| ۲۸ | ۱۱ | مشلہ | مثله |
| ۳۱ | ۸ | خوز | خور |
| 〃 | ۶ | دمجموعه | دی مجموعه |
| 〃 | 〃 | بہ ډول | پہ ډول |
| ۳۲ | ۵ | آموزشی | آموزشی |
| ۳۵ | ۴ | پہ د | پہ دی |
| 〃 | ۱۸ | دغه | ددغه |
| ۳۷ | ۶ | تحت الفظی | تحت اللفظی |
| ۳۸ | ۴ | لوی | کوی |
| ۴۶ | ۱۸ | وسره | ورسره |
| ۴۲ | ۴ | یسبح الله | یسبح الله |
| 〃 | ۷ | مخلس | مخلص |
| 〃 | ۱۴ | نترونه | نشرونه |
| 〃 | ۱۸ | پیړی | پیړۍ |

| صفحہ | سطر | غلط | صحیح |
| --- | --- | --- | --- |
| ۴۲ | ۱۴ | پوی | پوری |
| ۴۴ | ۱۷ | نیمکی | نیمکۍ |
| ۴۴ | ۱ | نیمکی | نیمکۍ |
| 〃 | ۲ | ډوارہ | دواړہ |
| 〃 | ۴ | قافیۍ | قافیی |
| 〃 | ۵ | لنډی | لنډۍ |
| 〃 | ۶ | 〃 | 〃 |
| 〃 | ۸ | 〃 | 〃 |
| 〃 | 〃 | لومړی | لومړۍ |
| 〃 | ۱۲ | کلو | ګلو |
| ۴۵ | ۱۴ | نجلی | نجلۍ |
| 〃 | ۵ | لنډی | لنډۍ |
| 〃 | ۶ | نجلی | نجلۍ |
| 〃 | ۷ | 〃 | 〃 |
| ۴۶ | ۱۲ | هرکز | هرګز |
| ۴۹ | ۱۴ | بیر | ببر |
| ۵۰ | ۱۲ | تصید | قصیده |
| ۵۴ | ۱ | سرکلو | سروګلو |
| ۵۵ | ۱۴ | وستولی | رستولی |
| ۵۶ | ۱۴ | خبر | خبرې |

| صفحہ | سطر | غلط | صحیح |
| --- | --- | --- | --- |
| ۵۷ | ۱۲ | د | دی د |
| 〃 | ۱۴ | غندی | غوندی |
| ۵۹ | ۶ | یاد | یاره |
| 〃 | ۷ | ډوارہ | دواړہ |
| 〃 | ۹ | پانی | پاتی |
| ۶۲ | ۱۱ | نیمکی | نیمکۍ |
| 〃 | 〃 | بګنتی | بګنتۍ |
| ۶۵ | ۸ | میزاخان | میرزاخان |
| ۷۲ | ۱۱ | ښکلی | ښکلۍ |
| 〃 | 〃 | یو | یوه |
| 〃 | ۱۴ | جمادی لسانی | جمادی الثانی |
| ۷۴ | ۶ | ګاہند | ګاہنه |
| ۷۶ | ۴ | نشته | نشتته |
| 〃 | ۲ | اورندونکی | اوریدونکی |
| ۷۸ | ۱ | لنډی | لنډۍ |
| 〃 | ۳ | شرومبی | شړومبی |
| 〃 | ۴ | لنډی | لنډۍ |
| 〃 | ۶ | 〃 | 〃 |
| ۸۳ | ۱۴ | چاته | چاترچي |
| ۹۸ | ۸ | مرض | مریض |

| صفحه | سطر | غلط | صحیح |
|---|---|---|---|
| ۹۱ | ۲ | اخست | اخیستې |
| ″ | ۸ | لړلمخی | لہ مخی |
| ۹۲ | ۲ | حی | چې |
| ″ | ۱۵ | کرشتی | کروشتی |
| ۹۴ | ۱۴ | گپسانو | کسانو |
| ۹۵ | ۱۲ | هکی | هکی |
| ۹۶ | ۱۶ | تپوس | تپوس |
| ۹۸ | ۱ | هکی | هکی |
| ۱۰۱ | ۱۵ | ن | ڼ |
| ۱۰۲ | ۴ | . | نړه |
| ″ | ۱۴ | دول | ډول |
| ۱۰۵ | ۶ | پنبتنو | پرښتنو |
| ″ | ۱۴ | لیږی | کیږی |
| ۱۰۷ | ۱۶ | ور | وړ |
| ۱۰۸ | ۲ | دکوچنیو | اوکوچنیو |
| ″ | ۷ | پخوانو | پخوانو |
| | ۱۶ | چاه | چا |
| ۱۰۹ | ۱ | اخبارنو | اخبارونو |
| ۱۱۰ | ۴ | ماخذرنو | ماخذونو |
| | ۱۲ | سند | دسیند |
| ۱۱۳ | ۱۵ | تشبه | تشبیه |
| ″ | ۲ | تیسلس | تسلسل |
| ″ | ۴ | پره | پوره |
| ۱۱۴ | ۷ | خای | ځای |
| ″ | ۱۶ | هیخ | هیڅ |
| ۱۱۵ | ۲ | راوړه | زاوړه |
| ″ | ۱۶ | شدلی | شړلی |
| ۱۱۶ | - | پریر | پریږ |
| ″ | ۴ | جوررول | جوړول |
| ۱۱۷ | - | کمزوی | کمزوری |
| ۱۱۸ | ۲ | اصطلاحکانو | اصطلاحګانو |
| ۱۱۹ | ۴ | مکر | مګر |
| ″ | ″ | دیره | ډیره |
| ۱۲۰ | ۸ | دواره | دواړه |
| ″ | ۱۷ | کولاپي | کولای |
| ۱۲۱ | ۱۰ | خرکند | څرګند |
| ″ | ″ | دواره | دواړه |
| ۱۲۲ | ۷ | انداره | اندازه |
| | ۱۷ | تول | ټول |
| ۱۲۸ | ۱۴ | ای | پای |

| لاپەڕە | دێڕ | غلط | صحیح |
|---|---|---|---|
| ١٢٨ | ٢ | پێ | منی |
| ١٣٠ | ٢ | یوە | یوی |
| ١٣١ | ٤ | مرادیری | نەمرادیری |
| ١٣٢ | ٤ | کنل | گنل |
| = | ٥ | دودی | دوری |
| = | ٧ | کنل | گنل |
| ١٣٦ | ٢ | رهور | زهور |
| ١٣٧ | ١ | عُنی | عُینی |
| ١٣٨ | ٧ | صفتوت | صفتون |
| = | ٩ | میربان | میریان |
| = | ١٠ | میرایان | میرزایان |
| ١٣٩ | ٤ | اوردە | اوردە |
| ١٤٢ | ١ | سادە | سادەکان |
| = | ٤ | ترلی | ترلی |
| = | ٥ | دوارە | دوارە |
| ١٤٣ | ٩ | اتباطی | ارتباطی |
| ١٤٤ | ٨ | زرەیی | زرەیی |
| ١٤٥ | ٩ | دبمنی | دبنیمنی |
| = | = | = | = |
| ١٤٦ | ٥ | عُنی | عُینی |

| لاپەڕە | دێڕ | غلط | صحیح |
|---|---|---|---|
| ١٤٧ | ٥ | وخورە | وخورە |
| ١٥٠ | ٤ | بنحُنە | بنحُینە |
| ١٥٥ | ٧ | ع | غ |
| = | ٨ | هعە | هغە |
| = | ١١ | دول | ڕول |
| ١٥٧ | ٩ | اخصاص | اختصاص |
| = | ١٢ | محمو | محمود |
| ١٥٨ | ٧ | دول | ڕول |
| = | ١٠ | هسوا | هیواد |
| ١٦٠ | ٥ | بنود | نبودل |
| = | ٥ | کوڕتی | کورتی |
| ١٦١ | ١ | ترصفی | توصیفی |
| = | ٨ | زارەسری | زارەسری |
| = | = | زڕي بنحُی | زڕي بنحُی |
| = | ٧ | تور | تورو |
| ١٦٥ | ١٣ | مرینە | مرینە |
| ١٦٦ | ١٤ | دمصد | دمصدر |
| ١٦٧ | ٧ | استعمالیری | استعمالیری |
| = | = | دل | ڕول |
| = | = | مصدون | مصدرون |

| صفحہ | سطر | غلط | صحیح |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱۷۲ | ۱۴ | کُورَم | کُورَم |
| ۱۸۱ | ۴ | مطق | مطلق |
| 〃 | 〃 | 〃 | 〃 |
| ۱۸۵ | ۴ | مونر | مونس |
| 〃 | 〃 | حُلمی | حُلمی |
| 〃 | 〃 | لیدلو | لیدلو |
| 〃 | ۷ | بہ | تہ |
| 〃 | ۱۴ | توت | توتِ |
| ۱۹۱ | ۴ | ہرورخ | ہرہ ورخ |
| ۱۹۲ | ۹ | ہمیستہ | ہمیشہ |
| ۱۹۳ | ۱۴ | وظیفہ | وظیفہ |
| ۱۹۴ | ۱۷ | حُنی | حُسینی |
| ۱۹۸ | ۲ | نیمکری | نیمکرہی |
| ۲۰۰ | ۱۴ | علیحیدہ | علیٰحدہ |
| ۲۰۲ | 〃 | حریص | حرص |
| (ف) | ۱۲ | بدبع | بدیع |

